# بیوسي

د عبدالهادي ریشاء

د اشعارو دوهمه

مجموعه

۱۳۷٤

# بیوسي

دعبدالهادي ریشاء

داشعارو دوهمه

مجموعه

۱۳۷٤

دمجموعې نوم ـ بېوسي
شـاعـر ـ عبدالهادي ريشاُ
دليکلو کال ـ ۱۳۷٤ هـ.ش
دچاپ ځای ـ کراچي
دچاپ شمیر ـ پنځه سوه ټوکه
خطـاط ـ عبدالناصر

# اهداء

دا د بیوسی مجموعه د هغو کوږداګو، زوی مړو او موږمړو پاک نیت ته چي د نابنا دواولسو د بنا د یو صادقانه غوښتونکي وه او په دې ارمان د خپلو مغزنو ککریو سره ډك زړونه د ځمکي په غیږ وروستل سوي دي اهداء کوم.

# سریزه

درنو لوستونکو!

ما د پښوکرږو دلمړۍ شعري مجموعې په سرکي ژبه کړې وه چې که مې توان وموند دوهمه مجموعه به هم د خیره سره چاپ کم. دادئ اوس وتوانېدم چې د خپلو اشعارو د (بېوسي) مجموعه د چاپه راوباسم او ستاسي حضور ته یې وړاندې کړم. زه پسر خپل بول و درېدم، خپله گایه مې داده ترسره کړه.

گرانو لوستونکو!

ترهغه گړیه پوري ترڅو چي د پښوکرږو د مجموعې په باب ماته د محترمو استادانو، شعرپوهانو او عامه خلگو له خوا مکتوبي، غیابي، حضوري د تائید او تنقید حالونه راتلل

چي ویونکي کور ښادي به څه پکښې ووايي. نوموي ولې په هوا زړه مي کښاندہ وو. کله چي پوه سوم چي د پښتو کرزو مجموعه بېخي چاله نظره نده غورځولې، نه يې يو ځنځه (نو) پر کش کړی دی، وروسته مي نو پرځان يک سنده کړه. زړه مي پر پښتی سو. یو څه ناتې مي پر کښېنوست. چاچي زه د پښتو کرزو د مجموعې په تائيد سره مکتوباً، غياباً او مخامخ غټولی يم. دوی دي د سيالانو سرسي. زه يې ممنون کړم.

او هغه کور ښادو چي د مجموعې پر بعضي ځايو تنقيد نيولی دی. د هغو تر داپاک دين وګرزم چي پر يوه مخ يې نده کږلې. او هغه ښادمنو او صاحب نظرانو چي ښه نظر او لار ښوونه يې راته کړېده. دوی ته سلامه دې، غيبي سپاره دې مله وي، کور يې ودان.

ښاغلو لوستونکو!

مابه دغه د (پښتو) مجموعه د وخته لا چاپ کړې وای. خو زه د ژوند په نورانګل اخته وم. د بلي خواچې مي د چاپ د پاره خالې څه غرانونه ټول کړې وه. په هغه بنې د ګرانۍ داسي هښه، باد نه و تی چي د غرانو زيږه سکه يې داسي ور سولولې وه چي غران د غاز ارزش خو څه کوي د خوشکۍ ترو زن يې لا و زن سپک سو.

چې د چاپ د پاره نه بسېدل، نوره لېږه، د ښه مانه درلودل
چې د هغه ځخه یوځه راواخلم او د چاپ مصرف ته یې
ورکړم. نو اریان، په اریان پاته وم، په چاپ پورې یې
اوګاره وم. یو چاته چې مې امید درلود هغه ته چې مې وریاده کړه
هغه هم تله تېره کړه، ځان یې وځړاوه، نه و ښوخېږدئ.
په داسې وخت کې نو ما وار و سړی ځاځا واسرنګه
کېږي. دا مې هم ځان ته عار باله چې رېشا دې دیوې
مجموعې د چاپ د پیسو په خاطر ځان د اوو محمد وپوروړئ
کړي. دا مې هم نسوای منلای، نه مې وړ بلل چې لیکلې
چاپ ته آماده مجموعه دې دغه سې نا چاپه پاته سي.
باره مې زړه راغوند کړئ. ما وېل "څه نتوکل یې پر هغه
چې بارانونه اوروي".

راولاړ سوم، پر چاپ خانو وګرزېدم. ډېرې چنې مې
و وهلې. په ارزان بیه کاغذ پسې مې بازارونه مټ کړه.
په چونګي، چونګي د صورت په سوهانګي مې دونه پیسې
برابرې کړې چې دا د ښوسې مجموعه په چاپ کړم،
او ستاسې حضور ته یې وړاندې کړم. ما خو دا کار د-
نس په خوزو وکئ. اوس نو پر تاسې ده چې نو کئ وخت
ورو باسئ او دې پلا ویلو زحمت پر ځان تېر کړئ.

دا چلي ما د بيوسئ په دغه مجموعه کي
سل (۱۰۰) شعرونه وکښل.
د دي کراستي يا گدلي شنل په تاسي اړه لري.
زه به تر هغو پوري غابن وچيچم، چي تاسي يې توري و
سپيني شنل سوي وړی خپل د قضاوت د ترازوو پلو
ته ور غور ځوی.
تاسي ته به ياد وي چي د دي شعري مجموعې شعرونه
د ډېره وخته ماته پراته وه. ما د پښتو کرزو د مجموعې په سر
کي لا دا خبره ستاسي تر غوږ تېره کړې وه. د هغه جملي
څخه مي بعضي اشعار د چاپ د پاره د لته رالېږل
کړه. او بعضي نوري لکه:- د
لوی استاد علامه عبدالحي (حبيبي) مرثيه چي د (پښتو ټولني)
په مجله کي داکا دمي له خوا نشر سوې ده. د عبدالباري (اشنا)
وېرنه د کندهار په مجله کي چاپ سوې ده. بر علاوه (۵۰۰) پانې
يې گنتنتو، او نشر سوي هم دي. د محمد گل (نوري) د مړيني
په يوه تلين کي چي د سرحداتو او قبائيلو د وزارت له خوا نيو-
ل سوئ وو، ما هلته هم د ده په ياد يو شعر ووايه چي البته
نشر سوی به وي. د جمال عبدالناصر مرثيه چي ما د ده
د مړيني په دوهمه ورځ ووېل، بيا مي و مصرته د ده دفتر
ته وليږل. کا گارين چي لمړی ځل د فضاء په سفر ولاړ او بيرته

را کښته سو. د ده په افتخار مي هم په هغه شپه شعر جوړ
کړئ. او د ده د فترته مي پس له څه وخته واستوئ چي خبر
يې د (از وستيا) روسي جريدې خپور کړئ. د لمړي پلا دپاره
چي (آرم ستراانگ) امريکايي پر سپوږمۍ قدم کښېښود، ما د
ده په شان کي هم يو شعر جوړ کړئ. په يوه پيټه کي مي
ثبت کړئ، نو گوره چي هغه پيټه به اوس چيري وي؟ د غسي
زمانور شعرونه په مختلفو جريدو او په مختلفو وختو کي خپاره
سوي دي. لکه :- د اولسي جرگي په مجله کي، د سولي د
جبهې په جريده کي، د اوسني ليکوالو په دريم ټوک کي او نورو
و اخبارو کي چي زما سره يې نه تاريخ سته نه مي شعرونه پياد دي.
خو اوس هم يو څه شعرونه د ټولني
په اندازه راته پاته دي. که نور سره برابر سوه بيا به نو
د خيره سره خبري کوو. چي بيا د بلدي د گوروان کاندرا-
ونه سي. اوس يې د چاپ وعده نه کوم.
خوږو دوستانو!
که ستاسو دا خيال وي چي د دې مجموعې اشعار به دونه
شيريني ولري لکه شير پيره يا به داسي مفرح دل و دماغ
و تسکين د هنده اعصاب وي چي په هرگونده کي به يې ترنگ
خوشي پرته وي. نو دا گمان مو بېځايه بولم. ځکه پدې شعرو
کي د ۱۶۰ کلو د بې وزلو د ځگر خبرکي، د بېزغاله مغزو جزکې،

د ژړه دزلزلو چغکې او د زړه درزونه، دردونه، غمونه ، انعکاس او نقاشي سوي دي. که څه هم ستاسي به خوا دروو هي. خو د پیلادو یلو توصیه یې زه څکه درته کوم چي، تاسي بیا هم د اولسو په جگرخونیو کي ورسره ګډ او شریک سئ، چي دوی یواځي په غم کي پاته نسي او پر دې تورې کمبله ټوله داغ دیدګان او غمجن سره کښیني او پاتا سره ورکي وروسته د غم کمبله ټوله کړي.

دا پلامي د دې مجموعې نوم په دې خاطر بېوسي، وټاکئ چي ټوله ناخوالي، ساړه اسویلي، دردونه، نادودي زموږ بېوسي ده. هو. ذهني، جسمي، مالي، او نور رقم، رقم بېوسئ زموږ په پنځه دي. تر دې حده پوري بېوسه او بېرندوکي یوچي د پیشي د تښه څخه هم بېریږو. هانور خولا پرېږده. دا زموږ بېوسي نه بولئ؟ چي پر یوه ټیک یې راته ایښې ده. په سر مو راته ګوري: تورې راته پرتندي دي. د ناترسو تر چپلاخه لاندي یو. د سیاه سرو ژړاوي، بنراوي، الـه لاوي دي. هلکان ځان د ډاګه، ډاګه وهي، پر خوله خوله لوږ و د پوره کیدو څوک نسته. په سترګو کي مو خاوري رډ، بډ پاشل کیږي. ټا ټوبئ مو ورک دئ. دخدای پراوبچه مو څوک نه پریږدي. په هرځای کي شېرخطیان یو. په جیب کي شانزده، په ګندري کي سیپروني ندئ پاته.

لځي و پټي شتمنۍ موځغلوي. د خپلو هستيو پر سر په
چيچه ايستلي يو. ټيغونه او ارزې لا د لاسه رابا ندي
صافوي. د دغه واقعيتو په نظرکي نيولو سره مي د دې
مجموعي نوم «پېوسي» وټاکۍ. چې د اکثرو جملو څخه هم
دا ټکي اوبېـو سيوږغ او مفهوم راوزي. موږ بېوسه
نه وو خواوس زموږ وس غښتو وسدارانو وړی دی.

خاوري عبدالهادی ريشاُ

# منــــه

زما کشري زوی (عبدالناصر) چي د دوستانو په کلي بولي راته تينگ سوچي ستا د غه د بهوسی مجموعه دا گبنت د چاپ د پاره زه ليکم. ماورته وويل چي "دا خو د زوی زړه دی. مگر ستا خط کله دوایې دی؟" خو ده تمينگار کاوه. ويلي "د طوا تکی دی که يې بېله مسا بل څوک وليکي". ورسره بنه مي کړه. ماويل "ودي گورو".

هلک رهي سو. د خوش نويسی يو کتاب يې پيدا کی. ورته وجوغبدی. اندر په يوه، يوه نيمه مياشت کي په خط کي دونه باولی سوچي پرخط يې زما باز کښېنوست. مجموعه يې په ښېړه توگه چاپ ته آماده کړه.

دی ډېر ذکي، پوه او مستعد زلمی دی. استعداد يې د ستاېلو وړ دی. مگر نوخه وکوچي پر هيواد مود بلاسا ختلې ده. د د غسي ډېرو مغزنو، مبتکرو او سالمو فکرو خاوندان د بل په خاوره کي تړه تلي، لی به ليه او تاك له تاکه گرزي. بيا زپه گنډه په ډوډی پوري حيران دي. داستعداد د روزلو او تحصيل استادان يې يا نسته يا هغه ټپله بخوله اخته دي.

زه اول د ده څخه د دي مجموعي د ليکني د زحمتکښی منه کوم. بيا يې استعداد ستايم چي په لږ وخت کي

دونه اَوْرَه سوچي مجموعه يې يک لو خته صافه ولیکل. دا دیٔ نن يې خط ته ستاسي سترگه هم وراوړي.
خدایٔ دي ده ته برکتونه ورکي. وزردې وزېږي.
دانسانیت په هره برخه کي د بریو غتي برخي ورته غوارم.
- ریشاء -

# فهرست


| شماره | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | لوی څښتن؟ | ۱ |
| ۲ | رب ته دریږو | ۲ |
| ۳ | اې خاونده ! | ۳ |
| ٤ | دغه حال دئ چې نه چاغیږو | ٤ |
| ۵ | لېوه هم پرهیز کوي؟ | ۵ |
| ٦ | حالونه مې راوړي | ٦ |
| ۷ | بیچاره پروفیسر | ۷ |
| ۸ | غم ځپلي اولسونه | ۸ |
| ۹ | لامونه دي پېژندلي ؟ | ۹ |
| ۱۰ | تشې د خولې خبرې | ۱۱ |
| ۱۱ | دخپل زوړه ناخبره | ۱۳ |
| ۱۲ | جنګ پر غلَه دئ | ۱٤ |
| ۱۳ | د لته ګذاره سخته سوه | ۱۵ |
| ۱٤ | زوی مړي لاس نه اخلي | ۱٦ |
| ۱۵ | للو ، للو | ۱۷ |

شماره ـ عنوان      مخ


١٦ . ملل متحد ته وايم ______ ١٩
١٧ . که راتله نو پاخه راځي ______ ٢١
١٨ . داځه سوران راغلئ دئ ______ ٢٢
١٩ . ياران يې بد راه کړه ______ ٢٣
٢٠ . دتولو زړونه ډک دي ______ ٢٤
٢١ . تر مرګه خوب ______ ٢٥
٢٢ . وې شرمولو ______ ٢٦
٢٣ . ياري صداقت غواړي ______ ٢٧
٢٤ . مخ يې راو لګاوه ______ ٢٨
٢٥ . دغه دئ ايثارنو ______ ٢٩
٢٦ . کفن کښې ______ ٣٠
٢٧ . بې باوره وعدې ______ ٣١
٢٨ . سل د زرګريو د ګر ______ ٣٢
٢٩ . پس ګردنه ______ ٣٣
٣٠ . نوبتي مرګ ______ ٣٤
٣١ . ناميندي ______ ٣٥
٣٢ . حق ده پېره ______ ٣٦
٣٣ . لرګي يې پکاردي ______ ٣٧


دوهم

| شماره ــ عنوان | مخ |
| --- | --- |
| ۳٤. د زړه غمچینه ________ | ۳۸ |
| ۳۵. لوی ختلم په زیرخانه ننوتلم ________ | ۳۹ |
| ۳٦. بې پرزو موټر ________ | ٤۰ |
| ۳۷. ژړبه د نازه ولویږي ________ | ٤۱ |
| ۳۸. کوربل ________ | ٤۲ |
| ۳۹. سر شکوني ________ | ٤۳ |
| ٤۰. مخ ته کرکنه ________ | ٤٤ |
| ٤۱. تماشه یې کوه ________ | ٤۵ |
| ٤۲. د بل لاس ________ | ٤٦ |
| ٤۳. ټوله دی دی ________ | ٤۷ |
| ٤٤. شخصي حکومتونه ________ | ٤۸ |
| ٤۵. پښتو ته لویږي ________ | ٤۹ |
| ٤٦. د مغزو عملیات ________ | ۵۰ |
| ٤۷. تالي ختې ________ | ۵۱ |
| ٤۸. وړستي هګۍ ________ | ۵۲ |
| ٤۹. د بندګۍ ژوند ________ | ۵۳ |
| ۵۰. د سرونو لوی ________ | ۵۳ |
| ۵۱. نه تعلیم نه تربیه سته ________ | ۵٤ |

| شمارہ-عنوان | مخ |
|---|---|
| ۵۲ . د غہ حال دئ | ۵٤ |
| ۵۳ .زړه ته مولويزي ؟ | ۵۵ |
| ۵٤ .ژړي تلي | ۵۵ |
| ۵۵ .ولي بل ته اړ يو ؟ | ۵٦ |
| ۵٦ . د غلو ملګري | ۵٦ |
| ۵۷ .څنګه وکم ؟ | ۵۷ |
| ۵۸ .بې فايدې مجلسونه | ۵۸ |
| ۵۹ .نيکي غوښتني | ۵۹ |
| ٦۰ .په وينه بيده | ۵۹ |
| ٦۱ .و چاته ور زغ کړم ؟ | ٦۰ |
| ٦۲ .پرکمه رهي يو ؟ | ٦۱ |
| ٦۳ .پښتون پاته سو | ٦۲ |
| ٦٤ .لاس يو کئ | ٦۳ |
| ٦۵ . ذ غاليان سو | ٦٤ |
| ٦٦ . فراري عاشق | ٦۵ |
| ٦۷ .مردار خواره | ٦٦ |
| ٦۸ . ترکلکين راته ګوري | ٦۷ |
| ٦۹ . ګلګل ميري | ٦۸ |

| شماره-عنوان | مخ |
|---|---|
| ۷۰. توپک خپل و پردی نه پیژني | ۶۹ |
| ۷۱. بوسه یو | ۷۰ |
| ۷۲. پر صراف کلپي نه چلیږي | ۷۱ |
| ۷۳. راغله، ولاړه | ۷۲ |
| ۷۴. بدي خاطرې | ۷۳ |
| ۷۵. منافق | ۷۴ |
| ۷۶. کوږ لاس کوږ مغزی | ۷۵ |
| ۷۷. برګ ګل | ۷۶ |
| ۷۸. بنه انګور چغال وهي | ۷۷ |
| ۷۹. پښي نه پر وړ ځي | ۷۸ |
| ۸۰. آینده نتیجه | ۷۹ |
| ۸۱. د بیت المال موږ کان | ۸۰ |
| ۸۲. نه شرم نه حیا | ۸۱ |
| ۸۳. ترکه و ارزانه | ۸۲ |
| ۸۴. سوک زړه | ۸۳ |
| ۸۵. اوږد زکندن | ۸۴ |
| ۸۶. پر یوه زخم بل زخم | ۸۵ |
| ۸۷. بنه کوئ بد مه کوئ | ۸۶ |


پنځم

| شماره ـ عنوان | مخ |
| --- | --- |
| ۸۸ . سگریټ کښانوا | ۸۷ |
| ۸۹ . نصوار یا نوته | ۸۷ |
| ۹۰ . خپلې ښکلي ته ځم | ۸۸ |
| ۹۱ . خبره خلاصه ده | ۸۸ |
| ۹۲ . خوندي نسته | ۸۹ |
| ۹۳ . په ټوک یا ځیره گزاره | ۹۰ |
| ۹۴ . د دالرو مریدان | ۹۱ |
| ۹۵ . بې سوره سازته اتڼ | ۹۲ |
| ۹۶ . د غوښو اکسیر | ۹۳ |
| ۹۷ . جوال شکاف | ۹۳ |
| ۹۸ . خرا مبو | ۹٤ |
| ۹۹ . ترنس کښته مزدوري | ۹٤ |
| ۱۰۰ . کږې لارې | ۹۵ |

# لوی څښتن

مُصَوّر، خالق، مالک د کاینا تـــو
ته لایق د حمد، ثنا او د صفاتـــو
تا راکړي دي بې شمېره نعمتونـه
اې منعمَ! معطي د انعامـاتـو
بینده په زره آګاه د هر بنده یې
مهربان یې نګهبان د موجـوداتـو
چې ستا حقه لار په صدق عملي کړي
هغو یو وره ستا رضا په عباداتـو
ته معبود یې عبادت تـالره بنایي
پرستش نه کړم د بت او فلـزاتـو
د شیطان د تیرا یستلو پناه غواړم
چې و لاړ نسم د خونکارو پرعاداتـو
د صالح نیکوکارانو عمل راکـــه
ما خوندي کړه د روزګار د جنایاتـو
ته هادي یې هدایت هادي ته ورکړه
دی خواستګر ستا د مقبولو هدایاتـو

# رب ته د ربږو

مسلمانان چې د خپل رب څخه جنت غواړي
هسې مولا له بندګانو عبادت غواړي
هادي قران چې بندګانو ته لیږلی رب دی
باید په دوړو کې پروت نه وي تلاوت غواړي
مسلماني تش په خوله نه کیږي عمل ورسره
هم اوامر هم نواهي مطابقت غواړي
که مؤمنان موږ یو له بله سره وړونه بولو
همدا اخوت په صداقت، مینه، الفت غواړي
که څوک یو اځی لمونځ کوي زکاة بیانه ورکوي
نیمی آیات مني د نیم څخه فرقت غواړي
د همسایه سره اسلام د وړوړ ژوند خوښو
هم د هغو سره دوستي او مودت غواړي
قتل، قتال، جنګ، جدل، فسق، فجور دی منع
سوله، صفا خوښوي نه چې عداوت غواړي
څوک چې تقوا لري هغه وي و خالق ته نږدې
څښتن عادل دی د بنده هم عدالت غواړي
خدایه ته رموږ عمل ته مه ګوره خدایې ته ګوره
ریښا په ټول جهان کې سوله امنیت غواړي

# اې خاونده!

پاکه ربه ته خالق زه دې بنده یم
ستا له امره څخه لیرې افتاده یم
په ګناه کې یمه ډوب تر سره پورې
د رحمت امید لرمه درمانده یم
شیطانانو یم د لارې اړه ولې
اې ستاره! عفوه غواړم شرمنده یم
په دنیا کې مې هم هیڅ خوا نسوه سمه
په محشر په خپل عمل سرافګنده یم
بندګان واړه وتاته یاغي سوي؟
او که زه په بینا ستر ګوناديده یم
نه وروري، نه اخوت، نه مؤدت سته
پر دې حال به لا تر کله پاینده یم
زما د ژوند چارې راسمې کړه خاونده
زه ریښا کله د چارو سازنده یم

# دغه حال دئ چي نه چاغېږو

راته وايي چي څوک مخامخ دروغ
د هغو خلکو لره مه پرزړه داغ
په خوله قال الله وقال رسول وايي
په خوړک کي مردار خوري لکه زاغ
په مجلس کي يې د ژبې لمبې وزي
وي د ننه زړه يې تور لکه ځراغ
چي د زړه او د خولې لار يې يوه نه وه
منافق دئ غوږه ژبه د ابلاغ
چي يې تول عالي صفات د پاک مؤمن وي
چيري و باسم د دې سړي سراغ
ولې نسي رنګارنګ ګلان خرجوه
چي د ګلو پر باغچو ګرزي الاغ
که په رنځ د خونريزۍ سړی اخته سي
نه جوړېږي د خاکشير په نبا داغ
هر ګړی دنا بوره مرګ په ګروم کي
ريښا خنګه څوک پردې حالت سي چاغ

# لیوه هم پرهېزکوي؟

یا پیدا دئ تباهي لره چنګیز   بد لوي جګي کوله لي په خاکرېز
نعمتونه کړي بدل په توره وخاوره   یا يې لا نس کړي په یوه ګړي پالېز
یا نبې راغلي بلبلان وږي د باغه   وابه نه وړې له کارګه د بلبل رېز
یا رمباړه، یا شیشنۍ، یا ډاړپې دل دي   حیوانان کله ویلی سي تیرېز
درنده حیوان دئ هرچا پېژندلئ   نه پوهېږي د دوی پوست په قناوېز
سرچینه که سوه مرداره تول مردار سي   که بهاند تر آخره وي کارېز
د مردار لا نس په خوړ کې ډیر حریص دئ   چالیدلئ د کارګه، لیوه پرهېز؟
یو د بل حیات ته ویني د ځان ورکړي   بل جلا د غوندي د ویښوي خونرېز
بنه و بد اعمال د هرچا جلا کېږي   که څوک ولري د عقل والبېز
پرېشان د نفس، هوا النبکر سي راغلي
اوس به څرنګه کوي ځني ګرېز

# حالونه مي راوړي

آ ښادمنو! ما غمونه دي راوړي — ما د ګړوب هيوا د حالونه دي راوړي
ټول ژوندي يې پرتې باندي څخېدله — او د مړو مې تصويرونه دي راوړي
يو مخېځه وطن واړه هديره وو — د قبرو مې فريادونه دي راوړي
سوخته دله پرهار زړونه هلته پاته — ما يې تش آه و دردونه دي راوړي
په نکريځو سره لاسونه هوري ښخ دي — ما نامراده ارمانونه دي راوړي
ما د ساندو د ژړاندو سترګو اوښکي — سيلابونه، سيلابونه دي راوړي
په اوربل يې د اوربل ويښتان پاشان سوه — شاعر خوشعري تارونه دي راوړي
بهارونه غوټۍ نه وې غوړېدلي — د خزان مې ژړ بلګونه دي راوړي
پر ديوال ماغزه پراته وه د بيبيانو — د کوڅو مي ولونه، ولونه دي راوړي
د مرګ وزې په ژوندیو پاڼېدله — په سند کي مي هډونه دي راوړي
روڼاتيانو لا تر کله روڼه نيسي — دا دئ ما روڼه ماتونه دي راوړي

دا چي نن له دې محفله مستي ولاړه
خو ريشاه د غم بيتونه دي راوړي

# بېچاره پروفېسر

ترسر د ودونړي په زړه کي اوربلېږي
د کوړي پښان دړه خونه سوځېږي

په ظاهره روغ، درون لړمون پخته يم
ناخبره د سباچي څه راکېږي

زما په رنګ تاړاک بل چاندۍ لېد لۍ
صورت نېږي، زړه لړزېږي، سترګي لوېږي

د علاج دارومي ندي پيدا سوي
پروفېسرمي په تشخيص لا نه پوهېږي

دېر تېروني دوست درڅ پوښتنه نکړي
بېګانه خوي په مرګ لا خوشحالېږي

رېښا مرګ ته انتظار باسه مرګ لنډ دۍ
خدائ خبر چي دژوندچاري دي سمېږي

# غم ځپلي اولسونه

پاته یم یارانو د غمجنوارمانو سره
نسته شیریني ژوندون تیریږي د ترخو سره

نه لرم خنداپرشنډو غم لرم، غصې لرم
ژړه کي ګلومه خپل دړد ونه د غمو سره

چاراته د عقل اساسي لاره و نه ښوده
شپه او ورځ تیریږي د پرسد ولیونو سره

خلګو اوړ اخستي دئ په او ښکو کي غوټي وهي
هسي آموخته سوه د سپړو د تو دو سره

ژر به آبد یده اولس له ګرمه سرده وخیژي
لاربه پرې کوي د وړاندي تګ د کاروانو سره

مه نامیده کیږه ریښتیا غم غصې د لیري کړه
ځان دي کړه نژدې د غم ځپلو اولسو سره

# لامونه دي پېژندلي؟

دغه څوک دي چي يې وژني هم يې سوځي؟
دغه څوک دي لوټوي چي يې دوړځي؟
دغه څوک دي چي د ورور د جيب يې باسي؟
په رقم، رقم نوموي يې ختا باسي
دغه څوک دي چي ښاري خلک د کوره؟
دغه څوک جلا کوي خپل ورور د وروره؟
دغه څوک دي چي قبرونه يې ډيريږي؟
کور، کوڅه، مسجد ښارونه يې نړيږي

دا د دې عصر زمريان که چغالان دي؟
چې خوړک يې د خپلو ورو ړد کور چرګان دي
دوی پرڅه دي تباهۍ ته جو غبږدلي؟
دا بې رحمه دا بښيلي، بښويد لي
دوی څه وايي، څه کوي، څه يې مقصد دئ؟
چې هر ځای يې اور بل کړی د حسد دئ
آيا پيژنۍ يې دا ناترسه څوک دئ؟
د سور سات او بس چې هر کاله ته چوک د ے
خلګو بس سئ بس ته، پرېږدئ خپل خوبونه
د ريښا سوالو ته ورکړئ جوابونه

# تشي د خولې خبري

د نړۍ بشرخواهانو، چیرې ورک یاست؟
د مظلوم طرفدارانو، چیرې ورک یاست؟
زموږ له حال څخه خبر یاست او که نه یاست؟
مهربانه پر خوارانو، چیرې ورک یاست؟
د افغان پر سر وخته ناورین سیده دی؛
بشر دوسته انسانانو، چیرې ورک یاست؟
سترګې پټې دي، که حق نسي لیدلی؟
حق بینانو بینایانو، چیرې ورک یاست؟
انساني عاطفه، رحم ولې نیست سوه؟
رحم دِ له هستمندانو، چیرې ورک یاست؟
افغاني ملت په وینو لړند پروت دی
بې سرحده ډاکترانو، چیرې ورک یاست؟
بشري حقوق د خولې تشي خبري
د عمل وفادارانو، چیرې ورک یاست؟
توازن نسته پلې سپکې درنې سوې
په نړۍ کې منصفانو چیرې ورک یاست؟

تر غذا سود سلاح کاروان د مخــــه
د ترافیك پیره دارانو، چیري ورك یاست؟
د اوربل قومانده دیر ژر عملي سي
د اوربند منصبدارانو، چیري ورك یاست؟
د افغان نجات ته کمـــه لاره وزي؟
مخ کښانو، رهبرانو، چیري ورك یاست؟
بشري نړیه قرض داره د افغـــان ده
بندي غاړي دیندارانو، چیري ورك یاست؟
د امید سترګي وتا سوته کږي دي
اې! د سمي لاړویانو، چیري ورك یاست؟
د کارګانو آوازونه پــورته کیږي
له دي باغه بلبلانو، چیري ورك یاست؟
په طعنه په اشاره به څه سي جوړه؟
خولې کړئ خلاصي شاعرانو چیري ورك یاست؟
ریشا ورك دئ په تیاروپه دربیلوکي
چیري یاست مشعلدارانو چیري ورك یاست؟

# د خپل زوره ناخبره

په ښایست کې قافلې دې مخ ته اوړې
خوولاړې یې د تورمخ غلام و درته
په مړانه دې د ښیان دې چپه کړي
په قوت کې غرولاړې یې هرخطرته
اې د خپل مړانې، زوره ناخبره!
توره چا ده تېره کړې ستا وسرته؟
ځوانې تختونه چاکړه دړي وړې؟
چې پر وچه مځکه پروت یې وسره لمرته
په برېتو او په شمله دې څوک اخته دي؟
په پړونې کې وړل کېږي و بهرته
سپینه وږځ دې د غفلت په خوب کړه ګړه
توره شپه به تېر وي و سپین سحرته
د بابا او د تیکه نوم دې هېرنسي
بد نامې بیا پاته کېږي وپسې رته
وروستي عمر د زېشا د بې آبې سر
وچه درختنه رسیږي وثمرته

# جنگ پرغله دئ

کهٔ د وړو ترمیانځ نه وي یکرنګي — زندګي د ښځونه ده زندګي
د ملت ترمیانځ کهٔ یو وار نفاق راغی — پروړ غوړځي هرڅوک اوړ بنګي
د غه حال پر افغانانو نن راغلئ — د نفاق اساس یې ایښئ فرنګي
د غیرت بګړی وغاړي ته لوېد لي — افغانان دي یو د بل سره جنګي
دېرین زړه وال د وړو په مرګ کړي فخر — غواړم هغه زړه اهاک چي وي سنګي
چي د بل په اشاره خپل وروڼه وژني — ترډي نسته بله لویه بې ننګي
نه آرام او نه امید د هوسایي سته — زوړ و ووړ ټوند تیروي په خلوت تنګي
چي پر زړه یې د رو پو د حُب تاپي وي — د هغو ظاهري خوئ وي پلنګي
په میدان کې چي چرګان سره ببرسي — لوړی ضرب یې وي پرتاج د کلنګي

ړیشاه څوک دي پرسورنا کله غوږ نیسي
چي وي پوړ ته آواز و نه سورنګي

# د لته ګذاره سخته سوه

د سپین سرو د نازو مې بد راځي
د سپین ږیرو د ګیلو مې بد راځي

مشران چې د خپل کور مسئوله نه وه
د کړو وړو څه د هغو مې بد راځي

چې په کور کې نه تنظیم نه د سپین وو
له دې ګډ وډ تنظیمو مې بد راځي

چې نه قول نه وعده وي نه وراشه وي
له درواغو د وعدو مې بد راځي

دلائیل منطق چې نه وي په مجلس کې
وچ دلو ړو آوازو مې بد راځي

فیصلې چې په عمل کې تطبیق نسي
پر کاغذ د فیصلو مې بد راځي

هسې ډېر شیان موجود ستا بدې ایسي
خصوصاً یا د جنګو مې بد راځي

ریشاوالا مسه یوې بلې سیارې ته
ستا له دې نصیحتو مې بد راځي

# زوی مړی لاس نه اخلي

سحرگروخه جادو را باندي کړي
عقل فکر یې دی زما له سره وړي
د خپل ځان سره مي واك واختيار نسته
کشوي مي لکه مزغاره کي پسړي
د ژوندون د پاره مڅکه راته سره ده
د مرگي په کټ کي پروت يم لکه مړی
د کم درد څخه نالش وکړمه خلکو
د وجود هره حصه مي ده کوبړی
چي يې غوښته هغه هوډه يې پوره کړه
پر څه لاس راڅخه نه اخلي زوی مړی
د دوو وروڼو په لاسو کي سنډلاخي دي
يو دابل حلالوي لکه اوزکړی
د خپل کور ه يې ريښا بهرته ويوست
پاته نسو په کاله کي دکور غړی

# للو، للو

الا هو للو، للو، خوب دي درځي دلېمو للو، للو آباهی، آباهی للو للو
د سترګو تور د زړګي سر للو، د تورې شپې ژړېده لمره للو، پر د ښمنانو سپي لاس بره للو
الا هو للو، للو

اوس دي خوبونه کوه، پاک خوږ کونه کوه، پر مور نازونه کوه
ځان مړه وه په شیدو، خوب دي کوه تر سپېدو
الا هو للو، للو

سبا قومونه روڼي، کار له غښتلي پالي، دوی ته دلوړي ساتي
ښتن د لویو کارو، د نوي، نوي فکرو
الا هو للو، للو

ته به اقوام وینبوي، ته به عوام وینبوي، بشر تمام وینبوي
ته د غفلت د خوبو، د جهالت د خوبو
الا هو للو، للو

نړۍ کي سپین دي که تور، هر یو د ځان بوله ورور، نړۍ د ټولو لوی کور
سره یو ځای د قرنو، پر د ښتو غړو و رغو
الا هو للو، للو

وچه بېدیا اوبــه وه ،خړي غونډۍ شنې کوه، زوزان د بڼه رېبــه
زړونه راباسه د غرو ، وتړه بند پــرن رودو
الا هــو للــو، للــو
پوره که لوړي هیلي، د مرگ سلاح کړه ویلي، وایه د ژوبد لــي
وړک کړه خطر د جنگو ، خلاص کړه بشر د لمبو
الا هــو للــو، للــو
زما وصیت و مـــنه، حق عدالت چلــوه، خدمت د خلگو کوه
د غه قیمت د شــید و، ستا څښته غواړي ببو
الا هــو للــو، للــو
د خلگو زړه وســاتــه، زړه یې د زړه وساته، لوی او واړه وساته
عالي انسانه للـــو، پر خواري گرانه للــو
الا هو للــو، للــو
آینده ه بنیاد اوسې، آرام، آباد اوسې، لوی سې د مراد اوسې
زما نازولي زړگــو ! ،چي هېره نکړې آدکــو
الا هــو للــو، للــو

# ملل متحده وایم

دا ده د انصاف، د عدالت، د حریت نړۍ
دا ده د بشر، بشرخواهی، انسانیت نړۍ
دا ده د انسان د ترقۍ او عصریت نړۍ
دا ده پر مخ تللي د وروری او د ښه نیت نړۍ

---

دا جملې که هرڅا په رشتیا سره ویلي وي
نن رېښې د ظلم او ستم باید ختلي وي

---

آیا استعمال د اسلحو تاسي ژوندون بولۍ؟
جنګ وانسانانو ته پیشرفت او تمدن بولۍ؟
او که پر عوامو بمباري عصري قانون بولۍ؟
و وایاست رشتیا چي د غه عقل که جنون بولۍ؟

---

زه د ورور وژنه خود خواهي وجهالت بولم
زه د انسانانو جنګول لوی خیانت بولم

---

جوړه پر یې د فاع خلګو ناورین دی مصیبت دی
دوی وایي چي جنګ داخلي کار د مملکت دی
ځواند! هسي نه ده د بهر مداخلت دی
هرځای چي جګړه وي د یو، اِن مسؤلیت دی

---

هر جنګ په داخل کي د خارج څه تمویلېږي
د خل د خارج وي د سد خلګ په پوهېږي

غونډې د ديوان د سرغنه وعاقلانو وي
داسي معلوميږي چي بازى د هلكانو وي
ځكه فيصلي بې نتيجې د انا يانو وي
يا د فيصلو تعميل پلاس د استادانو وي

وړ ده د ديوان استازي ژرچي استعفاء وكړي
يا دي د بې وزلو د نړۍ سره وفا وكړي

بعضي به پوهيږي چي جنگونه پرغله وي
ځكه فيصلو كي د زورگير درنه پله وي
هر ضعيف النفس د زورورو پر پله وي
نه دى عدالت چي ناحتيونه شله وي

خود به په نړۍ كي تر ډېر ليري لمبې بلي وي
خود به جوړې سوي د زورگير پرطرف ډلي وي

جوړي تباهى ته كارخانې د سلاح گانو دي
گټي د غټانو تاوانونه د كچنيانو دي
ناز و نعمتونه د قوي تنگدارانو دي
واره اختيارات فقط پلاس د څوكسانو دي

زه ريښاء انسان ته انساني خويونه تل غواړم
يا د غه نړۍ د خپل مدار څخه وتل غواړم

# که راتله نو پاخه راځي

نه راځي چي تللي دي ژر نه راځي
کله که راتلله نو بیا خبر راځي
ګوري چي لاړه سروته پاته دي
تش میدان ته بیا په پوره زړه راځي
اوس د ګل هوسو ګلستان نه دی
دلته نوی اوریځه بلیده راځي
اوس یې د راتګ پاسپورټ په لاس نشته
دوی نه پرنخره نه د یو اله راځي
یو ځل چي د غم کمبله نو له سوه
بیا په وراړکوي دي د واده راځي
هر وخت چي سړک یې او پاشي ولیږد
هغه ګډی پلي او سپاره راځي
یو ګړت که لمر تر اوره وو تی
هلته به ریښاء دلمر وړانګه راځي

# دا څه سوران راغلئ دئ

کله بیا غوړېږي د دې باغ غوټــه
ژړ خزان پر شنه بهار راغلئ دئ
خپل باغ ته څوک کله تیر یدلای سي
هلته درنده حیوان راغلئ دئ
ماتي کړي څمل بد نونه دي
نن ورځ د سوتي دوران راغلئ دئ
زه چي آینده ته نـــــظــر واچوم
زما نظر ته وران جهان راغلئ دئ
او ښکي د یتیم دوچید ونــه دي
دوی ته طوفاني باران راغلئ دئ
خلک خوري، ډېري خوري، سکروټي خوري
دا رنګ خورنده انسان راغلئ دئ
دا سي خورنده پهلوان ژرخملي
دوی لره د لري زیان راغلئ دئ

# یاران یې بدراکړه

زما خوازه یاران دي چېرې راځه تللي؟
دوی دي تللي که بل چا دي تیر ایستلي؟
نابللي بېګانه اوس راته ناست دي
ما په دوی کې څوک ونه لیدل نباغلي
نه خبره ، نه یې ژبه ، نه وراشه سته
نه یې زموږ د پرګنو حقوق منلي
دلته یو د زړه خوا خوږی پیدا نسو
کنډوالې ، یا تشې توري دي کوډلي
اوس به چېرې زړه خوازه یاران پیدا کړم؟
چې پر لوتو تپو ناست وي د کلي
شکایت ، درد وغمونه مشترک سوه
ریښا ستا په شان دي ټول پر زړه ویشلي



# د تولو زړونه ډک دي

چاته تش کړه مه خپل ډک، ارمانجن زړه
کم طبيب دی چاره ساز، د خوږمن زړه !
پاک صفا زړه مي د رحم پيدا نه کړی
چي يې گورم هرځای ويمه، خيرن زړه
د دوستی زړه چا وماته تر دې نکړ
نه خوږيږي زما پر حال، د دښمن زړه
د ناښاده زړگي حال چي چا ته وايم
ترما ډير د هغه خوار وي، غمجن زړه
که په سينه کي د ميني خوږمن "زړه" وي
نه جوړيږي په تعويز، د مين زړه
د ډير گرومه څخه ډک زړونه ځوانان سوه
زنده دل به وو. پخوا، سل کلن زړه
لکه نور زړونه چي ډک د ارمانو دي
د "ريښا" هم هسي ډک د ارمان تن زړه



# ترمرګه خوب

زړه له ډېره ګرومه څه پړسوب کړي
عقل سو ګډوډ نن لېونتوب کړي
مينه د يار زړه غواړي اخلاص غواړي
نه بسايي بې زړه چې مينتوب کړي
سر کې چې د جهل امبارونه وي
خوشي دی ادعا د سړيتوب کوي
چاته چې عادت د خوب ګولۍ سولي
پروت به وي ترمرګه پورې به خوب کوي
ګېند غوندي چې سر ډک د هوا څه سو
کله بې لغتي وړاندي توب کوي
ګېند پخپله پوره ته خيالات نه لري
وارې د لغتو لې لوړ توب کوي
ځواني ککرۍ تر خاورو لاندي سوې
زوړ ريشائ قبرو ته مشرتوب کوي

# وې شرمولو

ډیر و شرمیدلو تر هر چا پورې . څومره خجالت یو تر دنیا پورې

هر ځای رېشخندي د بلاسه یو . څه جواب به وایو تر بابا پورې

سترګي چې سي وچې بل څوك نه ویني . مړې سترګي والړې وي تر سینا پورې

څونه د رواغان موهم وانه وړیدل . حق وار باطل سوه تر رښتیا پورې

ډېرې د وعدو خلاف ور نه وسکوې . نه ورسیدلې تر وفا پورې

دا ژمنه يې هم د باور نه بولم . سل ځله يې وکړې تر سبا پورې

څنګه بې تمیزه زمانه سوله . خاندي د ریشا خوار په ژړا پورې

# یاري صداقت غواړي

یاري نه کیږي په زور محبت غواړي
هر قدم د میني غور، دقت غواړي
چي رضا د یار حاصله نکړي ګرم دئ
څوک چي ګرم سوه غه ولي جنت غواړي
رسیدل د عشق پر لار تسلیدل دي
خوب وخیال دئ چي په مفته وصلت غواړي
په آخر کي هغه پاته شرمنده سي
چي د یار د خوښي پرته عزت غواړي
د غرور د خره د شا به راشوه سي
غمازان چي مي د یاره فرقت غواړي
ریشا صاف اوسه په مینه محبت کي
یار په مینه کي تنها صداقت غواړي

# مخ يې راولګاوه

زندګي راته زندان سو . ديوالونه زولانه سوه اولادونه اتکړې دي . آزادي غلامانه سوه څه شي وکم؟ چيرې ولاړسم؟ . ډېره دې وخپل منفور يم کشران مې په خوله نه دي . مشران مو ناز دانه سوه په ما مخ دئ لګيدلې . څوک مې غوږ پر کږونه ږدي دوروستي عمر خوارې دي . ښادي ولاړه بېګانه سوه څوک مې ولي په د بېرو؟ . څوکلوي مې ، غموي مې چي پرسدي ځان بللې . هغه واړه ديوانه سوه ولي مينه الفت ورك سو؟ . ولي هيڅ ترحم نسته؟ ولي عقل و لارې پښبو ته؟ . چي پر جهل روانه سوه اختيارات مو دخان ندي؟ . که دبل د ول ته نخښيږو؟ که موسد د سره تللي . چي کار و ته خصمانه سوه بې چاره "ريشا" خوږيږي . وروستي عمر پرتيريږي دوړو په لاس کښيوتي . زړه د ګرومه پيقتانه سوه

# دغه دئ ایثارنو

نور موغت کړي غته وويي لانور
څان موتيت کړئ تيته وويي لانور
څومري سپک سوي يودبل په تله
آيا تر دغه سپکو ويي لانور؟
ټخپله سرو کړئ دي ورونه
په غم ککړ، ککړ وويي لانور
بل ته خندا څان ته ژړا راولي
خپل ژړيدلي ژړه وويي لانور
خپل څوروچي بيګا نه په خوښ سيي
بل څورولي څور وويي لانور
زموږ په غوښوا جنبيان ماړه سوه
هم مستو، هم مړه وويي لانور
جوړي مونه کړي آبادي وڅان ته
آبادي چيري نړه وويي لانور
ريشا په خپل غم مصيبت کې ډوب دئ
ندئ انصاف چي زغووويي لانور

# کفن کښ

چې یو څه سي د ژوند کار سره پټلیس
بیا پکښې باسي تر ځې یو ابلیس
ګله ګله په امید سره زړه ښه کړم
تر نظره مې پټوخ واسي تښیس
چې څه نه لري د دوی به څه سي سوده؟
چې هر څه لري هغه بیا وي خسیس
هیڅ دروغي امید مکړه د هغو نه
چې وراني يې وي لوستلي په تدریس
یم د ظلم په سکنجه کې ورغلی
د قوي لاسو په زور سره یم پریس
د امتاع د کم ځای و بولم یارانو
چې پر لیک نه امریکا وي نه انګلیس
رښتیا هسې کفن کښ کس ته حیران یې د
چې یې وکیښ د شهید څخه کمیس

# بې باوره وعدې

په وعدو په قسمو بې باور نسته
چاکه خپله وعده څو ځلي کړه ماته
د هغو قسم، وعده ختا ایستل دي
د رېشتیا د صداقت لار ځني پاته
لیرې، لیرې اوګوښه ځني تېر پېږه
له کاذب سړي مخ وګرزوه شاته
کاذبان هیڅ د وعدو پابنده نه دي
درون خبره غوږ ځوې سباته
له دروغو اسلام هر څوک منع کړی
خصوصاً درواغان نه ښایې ملاته
د درواغو مزل لنډوي دا مثل دی
په میدان کې ژر راوزي ورېشتیاته
بې حیاته د حیا امید ونکړې
مرګ بهتر وبې حیاته له حیاته
وي ساته په صداقت پاکیزګۍ کې
خدایه! حقه لار ورونبیې ریښاته

# سل د زرګريو د ګګر

د ماتولو وار يې خوړلی، پر کله د اتحاد دی
ما غزه تيت زړې، زړې سوه، کاړې وارې د استاد دی
پښت له پښته بيا تړزويه، دی افغان اولس نېکخويه
پر ميدان يې کلي لغړي، دا دکم يزيد ايداد دی
نه مؤمن غوندې زړه سوې کړي، نه انسان غوندې خپلو کړي
زړه يې سخت لکه دبره، دا خاصيت يې د جلاد دی
که پابنده د قرآن دی، که يې خوی د مسلمان دی
که خير په سود، زيان دی، هلته پاک د دوی جهاد دی
بڼ يې وکيښ د خوش بينو، ريشه کش معاندينو
چې بنا پر بنياد نه وي، تعمير خوشي بې بنياد دی
چې يې ايښې د توزل کړي، پنډ ستون چپه کيدل کړي
تر هغو چې نرې کيږي، و فولاد لره خراد دی
پر دک خم چې د آساقي وي او تر څو چې ړنګی باقي وي
نشئې به ملاقي وي، خمارې ته پرنه داد دی
چې بګړی يې د اسلام وي، خو په نيت د دو بادام وي
که هر څو ملا امام وي، هسې پټ لکه صياد دی
د مغزو به څه بنادي وي، چې يې ژوند نامرادي وي
بنادي ته لرو بنامنو، د ريشا زړګی نابناد دی

# پس گردنه

بد نيتي دي، يو تربله بد بيني دي
تربګني دي، خصومت دي، دښمني دي
بې عدلي، بې انصافي د کمه راغله؟
د بې وسو پر حق چور دی، شبخوني دي
اولادونه دکم دو، دي دانه خوره
د مرغانو په شان ورکي پلرګني دي
نيک اعمال ولي بدليږي په بديو؟
که دقيق سو داخبري بيروني دي
پر دښتوګر زيدل کله تمدن دي
په ښار وکي پاته لږ خوکورني دي
خلګو څه کوئ؟ پرکمه خوا رهي ياست؟
پر دې لاري خورا ډيري ديدني دي
"ريشا" وګوره پر شاو خوا نظر کړه
درته پاته چي لا څو پس ګردني دي

# نوبتي مرگ

پرنږه چي مغازې د اسلحو سته
و بشرته نوبتونه د مرگو سته
که مرمۍ له ماخطاسي پر ورور مبسلي
په ضربه کي کله وخت د نښانو سته
استعمال د اسلحو باید جاري وي
په تعطیل کي یې ترل د فابریکو سته
انسانان چي یو د بله سره وژني
بل څه نسته تنها گټه د پیسو سته
او که نه نو ورونه ولې د ښمنان سي
په هر جنگ کي پټ لاسونه د پردو سته
که سلاح سي د نړۍ له مخي محوه
و بشرته فراواني د نعمتو سته
دوی د دې دنیا لذات خان لره غواړي
و رېشا ته صرف نعمات د جنتو سته

# نا مېندي

څمه څپل کاله ته کوږ مغزی د اندېښنو سره
اوښکی سوې لاړو نه د غمجنو کاروانو سره
لاړه ده اغزنه سړک وران پل نړېدلی دی
چاودې پښې ړهې یم د خولې خلاصو اولادو سره
څوری د لارختم سو نوکان خوړه د لوږې څه
وچه وچوبې ده درخته نسته د ابو سره
ورک چې سو ټاټوبی نه کنډ غالی نه دیوال ښکاري
وړځی تېر و مه د قبرو او کنډ والـــــــــو سره
وایستل ګرانی د تن کالي په څپل قوت له ما
وچې مړی غوړه صدری یو وړه د جېبو سره
هیهات چې د اثر انده ستر ګې یاد اوښکو وچې سې
هیهات چې په کتکې به وېناو باني د مړو سره
ریشا دانسانو د خوښیو مزه تللی ده
شین پالیزېي لاښن سود لو ښلو په ګلو سره

# حق ده پېره

ژبه خوله کې دومره کله سوځنده ده
لکه بل چې مې پر زړه داور لمبه ده

غماز انو زه پر خوله یم پېژندلی
چې په ما پورې خوږه ګوله ترخه ده

زه انسان یم د لرګي نه یم جوړ سوی
ولې کش زما پر سر د غمباره ده؟

خو تبر لره درختې لاستی ورکړی
د ږیبنو څخه چې قطع یې تنه ده

د غړومبې یې خلګ تول لړزېدله
پر راغلې نن د بیرې پرې لړزه ده

په غیرت یې د زمرې نوم وګټی
د بانبې پنجه یې بنځه پر کله ده

نن یې ولې د همت بکړی شوه کړه؟
پر سر پروته یې خالې، وچه ډبه ده

څو عقلونه په سرو کې پیدا نسي
د هر چا څه ورکه لاره او کوڅه ده

# لرګي يې پکار دي

هيڅ قوت ورپاته نه دی يو زره
بايد نسي پرخپل ځان باندي غره
د ميوې اميد له هغه ښاخه نسي
چي ياوچ وي، ياپه بيخ کي وي اره
وچه ونه ښيرته نه کوي برګونه
نه ګلونه، نه ښاخونه ګرسره
دچرسي زويه دګټي اميد مکړه
دهغو څه هم چي ناست وي پرپره
هغه باغ ته چي باغوان يې نه دلودی
چغالان وړځي پردراوپرسنخره
دليوه څخه غټ مزونه لابيريزي
چي له څنګه څني پوره کړي بره
زه ريشاء دهغه چاڅه ډيريريزم
اسلحه چي يې وځنګ ته وي خره

# د زړه غمچينه

ګرانه د شيدو په دول سپينه ده
مخ لکه سپوږمۍ دي ماه جبينه ده
يو ځل چي د يار وخنګ ته کښېنستل
هغه وخت له شرمه سره وسپينه ده
پته خوله کي يو کتاب خبري کړي
زړه کي يي ساتلي پټه مينه ده
کله چي په ناز سترګي راواړوي
پوه سمه چي تن لړزخه خوشبينه ده
شونډه چي يو ځل ترغابښو لاندي کړي
هغه وخت يي مينه له يقينه ده
لوړ قديې چنار غوندي رسا ښکاري
ملا يې هم باريکه هم وربښيمنه ده
کله چي کوڅي ته په خپل لاس و اوري
هغه د ريښا د زړه غمچينه ده

# لوړ ختلم په زېرخانه ننوتلم

ما قضاء ته د ختو لاړي څارلي
په نصیب مي گورستان یا زېرخانه سوه
چي هوس د پروازو راته پیدا سو
وزړ وچ سو زما په پښو کي زولانه سوه
نابوبره د صیاد په دام کي گیر سوم
بهانه راته د دام یوه دانه سوه
یا به مرگ اوس قبلوم یا به یم غلی
اقرباء راځخه ولاړه بیگانه سوه
عقل هوښ راځخه تللي لېوني یو
دا په دي چي مشران مو دیوانه سوه
صدقه مي خزاني نسوي د خپلو
هستي واړه د پره دیو نذرانه سوه
آئینه غوندي رښتیا نسم ویلی
دروغان مي په دنیا کي افسانه سوه
د تعمیر په امید ماوي لیځي نغښتي
د ریشاء د پلاړ کونډ غالی ویرانه سوه

# بې پرزو موټر

چې درست عمر يې تېر کړی په مزووي
پر بل چا يې کله هسې ژوند پېرزو وي
پر پالنګ د عياشۍ خوب نه کېږي
خوب يې نه وړي چې بستر يې داغزووي

تېر واته دي که د کار هيله ترې وسي
چې لوی شوی په نعمت او په نازو وي
په غفلت کې ښکاري ښکارېږي ښکار ولې
څکه غلی ناست چولوته د خزو وي

ده بهتره چې چپ کښېني په مجلس کې
هر مجلس چې ډک په غټو آوازو وي
چې د ژرندې پل يې څرخې پر سر باندې
څه ښادي به ورته پاته د مغزو وي

پوره، پورته غوړځېده د بل لرګي ته
دا کاروونه يا ديز يا د بېزو دي
هر موټر چې بې ډرېوره وي، ولاړ دی
خصوصاً چې بيا بې تيلو بې پرزو وي

رښتيا صبر تحمل ډېر ته په کار دی
که په ژوند کې درسره کمه آرزو وي

# ژړبه د نازه ولوېږي

لاس راخځه واخله ای ظالم بې دین غمـــازه
تېر به دي دوران سي ژړبه ولوېږی د نازه

څونه ځوکلېدل، څونه جفا هم تا و نکړله
وګوره تاریخ ته تر انجامه له آغـازه

ظلم که تعدا وه که هوس وونو دي بس دئ
نه يې تـر آخره بهره مندله امتـــــيازه

تاکه ځان پټ کړئ دئ د طلســم په لباس سره
اوس نګار پوه سوئ دئ چي څومره يې چمبازه

څه توری واخلـه د جانان بې اعتما ده يې
مالره دخپل جانان د وصل درګاه بازه

خوار ریشا په عشق کي کهر څونه ځو کلېدلی دئ
شکر دئ خاونده معشوقه پوه سوله رازه

# کوربل

چې ترسترګو مې د یار اوربل جل بل سو
اور د مینې مې د زړه په کور کې بل سو
تازه دمه وم د سوي زړه د سوخته
زړه مې وروسته بیاله سوی څه په کوربل سو
د فراق بتې بیابان راته انګار دی
مخامخ د اور لمبې راته کوتل سو
د حباب ترڅنګ لاندې مې اتراغ دی
د سکروټو په باران کې مې منزل سو
هیڅ نسخې مې د مرض علاج ونکړ
د ګولۍ پر ځای ګولۍ راته اجل سو
ریښا ستا لا آینده ژوند ته امید دی
چې پر زړه د غشو واری مسلسل سو

# سرشکوني

د خپل ځان ژغورنې یې وسوځ په لمبوکي
په کندړي کي پاته نه سو سپیروني
د باباهستي یې وړکړه بېګانــه تـه
اوس د بل پردړ ولاړ دئ ژړغوني
هیوادتوله په لمبوکي سوځل کیږي
پاته نسود ادې پر سرپړوني
هیواد وال دي ترخپر ولاندي سوي
پرلړزانه چوکه جنګ او سرشکوني
پرماشه باندي یې ګوتي سره ایښي
وکوتې ته کرول د توپک نوني
چي د جنګ لمبې یو لږ څه آرامیږي
د بل لاس په لاس کي وړکړي اوړلړوني
چي جنګي جامه وجنګ لره په تن کړي
بدي اېسي ساده زړه برګ پتلوني
ریښا ناست په لنده بله ژړخانه کي
پر پښو دړد دئ لګید لئ لمړوني

# مخ ته کرکنډي

شړمبان یوارپسه کړي اندي
ځني وځغلوي هریوخپلي ونډي
انسانان هم ځني دي لیوه صفـــته
ځغلوي دوړورد مالــه ځځه پلنډي
د حلال مالوپي نه وکړلـه ځــکـه
دکي خیتي د حــرامو تنډي، تنډي
چي دخولې او دزړه لاره یوه نه وي
منافق دئ په اسلام وهــيـ ملنډي
رقیب لس ګرایه بدتر ســر شړمبانو
عاشقان یې پسي واخستل سالـنډي
ومزله ته رسیده هغوته ګـران وي
چي په مخ کي ورته پروتي وي کرکنډي
د ریښاء اوږده مزلونه دي په مخ کي
ربدته کړي اوږدي لاري ده ته لنډي

# تماشه یې کوه

نه ده نکټایي د عصریت نخښه
نه دي پوچ الفاظ د علمیت نخښه
تش کوټ و پطلون سرټیټوت نه بولم
څو یکښې و نه وینم د پت نخښه
چا که مظلومان تر لاسو و نیول
دا ده د غیرت د شهامت نخښه
یا که یې پوره کړي د بشر خواستې
دغه ده بیشکه د خدمت نخښه
زړونه له دې ژوند څخه تنګ سوي دي
نسته پر نړۍ د حریت نخښه
نه ده وبشرله سلاح پکار
دا د قدرت منو د قدرت نخښه
ورځ په ورځ بشر و تباهي ته ځي
سیل کړه ریشاء د جهالت نخښه

# د بل لاس

ډېر بشاش مخونه سوله پژمرده
ښادي ولاړه خلګ ډېر دي غمزده
انساني خصلت د خلګو فراموش سو
ولې جوړېږي کړۍ د ځانه درنده ؟
مړېده يې د انسان په غوښو نسي
چاپيدا کړه دا د غوښو خورنده؟
وړونه ولې يو تر بل تر لـه وتلي ؟
رسوايي ده ، نکـړي يو د بل پرده
اکثر خلګ چي مقصد ته نه رسيږي
اجنبي لا سونه سته پس پرده
ويره خوله د خندا نسته شنډي بوڅي
غمجن حال د ئ نه خوښي سته نه خنده
رېشاء ناست د بې وسي تخته نالش کړي
د سيالانو په مجلس کي شرمنده

# ټوله دی دئ

بیگانه ته یې ښندي خپل ورور یې مړ کړی
په عالم کې شرمنده سو ځان یې خر کړی
هست و نیست یې واړه ورکړه و پردو ته
د اولس تر مخ یې ځان لڅ ولغړ کړیه
له بهره یې اولاد ته څه را نه وړه
لا د لاسه یې اولاد ته ځان منګوړ کړیه
د بابا عزت یې وپلوره په جهل
ځان یې نورو ته په دې توګه ګادړ کړی
د خوړکی بنار سی جتي پر سر کړه
ده و خوړ ته ور پر سر د غم ګډ کړی
د هیبته یې زمریان لا لرزېدله
نن یې ولې ځان بانښي لره کوکړ کړی؟
په پاکۍ کې یې قدم مخ ته وانه خیست
تر څو یې لا میدان په غم ککړ کړی
ټوله ته یې غره مسه په کردار دي
ریشا ښه سوچي اصلي نفردي پرکړی

# شخصي حکومتونه

برني پر پړوني باندي تاوان کړه
نني ته د سبا وعدې بیان کړه
چي سبا سو تیاري د تیښتي نیسه
آماده وا استعفا لره خپل ځان کړه
د شخصي حکومتو دغه قانون دی
بله پلا بیا په بل شکل ځان عیان کړه
ته ودی په مطلب بنه سره پوهیږی
بېچاره خلګ په ځان پوري حیران کړه
په خلوت کي تا ته هر عمل جائیز دی
پر بهر خبر د خدائ، حدیث، قران کړه
که په پټو مخلوکي هرڅه لـــګ سي
خو د باندي سپین پټکی، کمیس تمبان کړه
دا دنن د بدکارانو دود، دستور دی
چي د خلګو ترمخ سپین ځان مسلمان کړه
که رضا د خدائ مخلوق ځان لره غواړې
ریشاء ځان دي حقیقي عالي انسان کړه

# پښوته لوېږي

کہ سیلۍ اوړي کہ سوځم پہ لمبو کي
کہ خندا کړم د ژوند یو پہ تبرو کي
واړه دي دي پہ ما هسي چاړي کاندي
تیروم ژوند زه د عشق پہ مرحلو کي
د جانان د کلي خواتہ بې پروا ځم
بېره نکړم کہ تېرېږمہ پہ سپو کي
د فقیر او سپو خوتل سره پرتہ وي
پہ یوه ډوډۍ ړالوېږي ژړ پہ پښو کي
ځو پېښ ړو ي خپل جانان ویلي نہ دي
غماز اکلہ شمېرمہ پہ سرو کي
زما د عشق مِس معلوم سوي دي ویاړتہ
رقیبان ژر حسابېږي پہ پردو کي
پہ رشتینې عشق چي زما ګل رخ خبرسو
ریشاء ګرزه د ګلا نو پہ باغچو کي

# دمغزو عملیات

ورکاوه يې دکومک په نامه ونج
اوس د هرې روپۍ سودا خلي څلور پنځه
د سروزرو کټوريان يې په غلا يووړه
زوړ منګي يې ورته پرېښود پر ګرونج
طلايي خښتي يې وړي په عوض کي
ورکوي وچه تکه لکه اسپنج
د بابا غوښي يې وخوړې کارګانو
د زامنو په کله کي نسته سنج
پر مغزو ماهرانه اپرېشن شوی
چي ساده مسايل ديږ اسي بغرنج
د لستوني مار دئ ډير په عذاب کړئ
سوه د هريوه ښه لکه نارنج
يو کچکول، يوه لکړه ورته پاته
ځغلوي ژر اوسنۍ پخوانۍ ګنج
يوه ورځ به د حسابوکتاب راسي
چي يې وېچې مغزي، پښې وآرنج
ريښاء هيښى ناست دئ په چرت کي نه پوهيزي
وړي له دغسي ناخوالو څخه رنج

# تالي څټي

چې پرچاپې د عتاب سترګې کړې غټې
هغه دم هغو په پښو کړلې څوټې
نه اسلام، نه شهامت دی! نه غیرت دی!
چې دوروړ په غوښو وهي سُمَټې
دا ښکار ندی چې پر لاړ لاړ دي لښکرې
ښکار هغه چې په هوا ولې خرګټې
کاسه دکه د حلال رزقه مزه کا
نه چې بل د رته ولاړ وي تالي څټې
چې د وروړ د سر په بیه لنګی غواړي
خدایه! مه کړې راپر سرهسې خرتې
پر کاغذ باندې مې وکښې څوخبرې
هسې پروتې وې په زړه کې لکه خټې
دا بیتونه د ریښا که چټیات بولي
ناداڼانو اعتراف وکړ په مټې

# ورستۍ هګۍ

لو ګیله د زوروروځه کیږي
چي وې نکړ د کمزورو لاس نیوی
د تورزنو شمله ورو غیرت ندیٔ
چي کوي د وړور پر حق باندي تېری
چي ملت یې ترخپل ځانه پورې هېروي
د هغو به برخه مه بوله بری
مجالس او فیصلې بې نتیجې وي
پکښې ګډ چي په خیرن زړه سوسړی
چي ترچرګي څوک ورستۍ هګۍ کې لاندي
امید مه کوه چي وباسي چیچې
مسلمان که ترنامه نړیوه اونږده کړه
پر شکمن یم که یې لندوونیم ګزی
د خالي اوبو به څوک کوچي وانه خلي
د غرکي چي هرڅونه وي شرپې
ریشا، هغه وخت خپل ځان بختوربولي
که یې وکیٔ د تېریو مخ نیوی

# د بندګۍ ژوند

شوه کېږي به د قبر و زندان ته — که هر څو دي نن هوا د آزادۍ ده
دغه لار چې دې اخستې ده بندېږي — فکر وکړه دغه لار د بربادۍ ده
لکه غاړه تړ ابده لکه نه وي — کله کله لکه غاړه د زندۍ ده
پردې تر توله غوړولي مستان ګرځي — زمانه نن د سوټي او د رندۍ ده
که د عجز و خلوت څو د ننه — خلوتګاه ور فقیر ته د بنادۍ ده
که شاهان په دې خلوت څوک محصور کړي — ورته پېښه نا جوړې د سابندۍ ده
د ریشا ژوند نه شاهي نه فقیري سوه — ژوندي د بندګۍ د بې خوندۍ ده

# د سرونولو

نه ورځم د یار کوڅې ته نه . ورځم — توري جولي ملته تګ و دوکوي
سپي غماز مي لاره بنده کړې ده — درکي د جانان ولاړ عوعو کوي
کله يې حضور ته رسېدلی سم — لار کي رقيبان راته پیشروکوي
یار مي د زړه کېنت ته ورلوېدلی دی — ملته مي د عشق د ونړو د روکوي
کله يې د حق آواز تر خوله خېژي — دوی لکه میناوې کړچوکوي
دېر دېر د رواغان مي اورېدلي دي — پوه یم بیا پر نوړو وعدو خوکوي

نسي رسېدای ریشا تر یار پورې
خو چې جلادان د سرولوکوي

# نه تعلیم نه تربیه سته

تعلیم نسته ماشومان بې تربیه سوه — مکتب وران سو معلمان څني کنده سوه
تربیه د وړکو جنګ دئ یا ښکنځل دي — مور و پلار یې د ډوډۍ په غم اخته سوه
په کوڅو کې کچنیان واړه لوچګان دي — په ډېرو سره ولي دیوانه سوه
جهالت ورځ تر دا بله ورځ ډېرېږي — خوی خصلت یې د حیوان اُدبوده سوه
پلار یې وزي د روپو وګټولېدو ته — اولادونه یې کوڅې ته وړ ایله سوه
انساني خوی یې بدل په حیوان توب سو — هم یې ناسته هم خبرې د شوده سوه
د ریشاء د خولې چې هر اوف، آه اُوزي — پر کاغذ د فریادونو مجموعه سوه

# د غه حال دئ

غوښې خوړې د خلګو په جرئت سره — وینې یې چښې په ډېر لذت سره
نس یې ورځ تر بله ورځ پړسوب کوي — خېټه به یې و موښلي د چټ سره
ورځ راځي چې لوی انقلاق وکي — څیرې به لړ شین سي په شدت سره
وي پلوړل د پلار هډوکي و پلوړل — راپې نیوئ جهل په عزت سره
مه کوئ د خدائ وروی ته وګوړئ — ګوړئ ټوله حال ته په دقت سره
دا د هوښیارانو کار زه نه بولم — ګډه بې عقلي د حماقت سره
چا چې د بېوزلو حقوق لاندي کړه — ځئ به بندي غاړې د ذلت سره
چا که مظلومان لوړې ته پوړته کړه — دا دئ ریشاء ژوند د شرافت سره

# زړه ته مولوېږي؟

ټول خوند ونه ټول، زموږ د زندګۍ سوه
موږ ته پاته زندګي د بې ننګۍ سوه

نهالې نن ورځ دي مړه چیچیان ایستلي
زما خیال چې دا دنیا ورسته هګۍ سوه

ځلېدونکې ځلا ورکه سوه تیاره سوه
له محفله څخه پوره ته ماړه دنګۍ سوه

ترانې د عشق به هرچا نه غولې
خولې ګپې سولې او ماته سارنګۍ سوه

هغه زړونه نن د جوشه دي لوېدلي
چې له سره راشوه شڅه لنګۍ سوه

افغانانو خپله توره بل ته ورکړه
افغانه توره روسه یا پرنګۍ سوه

څوک دي ولې په وینا وونه پوهېږي
ریشاء ستا ژبه توږۍ سوه که ګونګۍ سوه

# ژړي تلي

داځه حال دې چې ژړېږې کونډې ړندې
دیوې هنتې ناویانې سولې کونډې

د چاپښې لکه چڅلي دي د نګرې
د چاپنډې، پنډکه، نوړې هم سوې پنډې

نااهلان په دغه حال پورې خنداکا
عاقلانو ورته وچیچلې شونډې

خلګ نه ګوري وبدي آیندې ته
وجواب ته یې نیولي خولې دي منډې

ټول اولس پر دې کمبله نه ځاېږي
پرکمنې کمبله نه سي لوېې غونډې

چې چېرې یې د خپل کامه پوهولې
د هغو چېرې عالم ته سوې برښنډې

د غفلت تلک یې کش کړې پر سر باندې
ژړي تلې یې راووتې ترڅنډې

ریشاء مه ورځه پردې ناحقه لاره
د ناحقې لارې وځغله په منډې

# ولي بل ته اړيو؟

تیل مونسته د څراغ او د اوجاغ　　بل ته اړ یو موږ په تیلو د څراغ
پلیسوز مو و خپل ځان ته پیدا نکړې　　لګولی مو دی بل ته چهل چراغ
هم په ستن هم په کفن بل ته احتیاج یو　　په هستي کې یو نښتمن زړګی داغ داغ
زراعت سته مالداري ځکي پر پوانه　　مګر نوړ بي له تولید څخه سوه چاغ
په سترخوان کي که یوه ګوله پیدا سي　　د هوا څخه غوټې وهي پرې زاغ
خولې دې منډي د زړه حال ویلای نسو　　موږ د بل تر نظر یو لکه ألاغ
ولي اړیو په هستي کي د بل لاس ته؟　　راسئ و باسو د دې اړتیا سراغ
که اصلي علت د دې حالاتو غواړې　　ریشاء وابه وړې پخوس قسمه دړواغ

# د غلو ملګري

نه جوړیږي څو اخلاص، صداقت نه وي　　نه خپل کیږي تر څو مینه، الفت نه وي
وهرچا ته خپل حقوق کله رسیږي　　چي حاکم د عدالت حکومت نه وي
که د چور د پاره تړي وي پر انستي　　په هغه ځای کي د خلګو دولت نه وي
حاکان که سوه د غلو سره ملګري　　مال لا څه کوې د سر امنیت نه وي
بدامني او ځان ځاني چي هر ځای راغله　　بېره، وهم وي مال، سر سلامت نه وي
پر بې وسو، زوره وړ کوي ظلمونه　　د بې وزلو سره زور و طاقت نه وي

ریشاء غواړي پر نړۍ چي عدالت وي
په بشر کي خیانت، جهالت نه وي

# څنګه وکم؟

د فراق په لمبو سوی خوږین ځګر یم
د وصال په امید ناست صبح و دیګر یم

ما د مینې لار په وینو او پاشلې کړه
اوس د ډېرې خونرېزۍ رونده په نظر یم

د زړه وینې مې د خولې څخه فوارن کړې
کږ مژګانو یې وهلی په خنجر یم

سر و مال مې د وصلت پر لاره ولاړه
د عشق لاره کې زه تېر تر مال و سر یم

سپي رقیب د یار له دره فراري کړم
د هغې ورځې تر اوسه دربدر یم

چې په سینه ورځ کالي راڅخه کاږي
نو به ولې هسې غلو ته خوش باور یم

له درباره چې آشنا نا آشنا باسي
زه رېښا به تر هغو د بل پر در یم

# بې فائيدې مجلسونه

يو سړئ وي د توپو په ويشتو ستړئ
بل په څغاسته پر د بنتو بيابانو ستړئ
چا شپه تيره کړه په چوړ پسې ړوان دئ
د هغې خوا د گوني په ړاوړ و ستړئ
چې لري يې هم د خواست لاس بړ ته نيسي
سو ناداړ پر نړيارتو په نقلو ستړئ
څوك جامونه يې پر پې چينې تشيږي
څوك کاگل لره د بام په کاسو ستړئ
څوك په شام پارپس مخ زيره خيشته کړي
بوټ پالیش والا په بوټ ومو ړو ستړئ
شپه او ورځ يو ځای وبل ځای ولي منډي
هر هيئت په بې فايدې مجلسو ستړئ
دې ستړيا و وکې ظاهره منفعت سته
په باطن کې وي په د کوکلمو ستړئ
وړيشانه هوسايي نده وړ پاته
هره ورځ په جنازو و فاتحو ستړئ

# نیکي غوښتنې

پناه را کړه د شیطان د وسوسو . حب مې وباسه له سره د پیسو
ما د حق او حقیقت پر لار رهي کړه . چې را وو زم د نااهلو د جلسو
انساني خوي ونه زما سره همراه کړه . نه لیوه غوندې چې ګډ یم په پسو
د هغو ملګرې زما په نصیب مکړه . چې په دام وکولي کاږي د نسو
چې تیر نه وزم د ناکسو په وینا وو . ما غالب کړه د شیطان پر دسیسو
دریشا د تسلیم لاس وتا ته پورته . خواست کوي د خان اولاد د اولسو

# په وینه بیده

د دښمنو په لمبو سره تاوده سوه . یو د بله په میدان کې سره سره سوه
د غرور څخه بیا پر مستۍ را غله . حقیقت په سترګو نه وینې ړانده سوه
چا دوی ته د نشې پیکارې ور کړه . چې مستي یې د مورلې په بزعیده سو
لکه مزد بل دعوت ته حلالیږي . غاړې یې پرې مذبوحانه یې غورځیده سوه
په خوبي مواد لرلې یې ماغزه دي . په وینو کې څملیدلې بیده سوه
دریشا الوزانه زغ محفل زغن کړي . دا زغن او ازبې سوره سرېنده سوه

# وچاته ورزغ کړم؟

هدیرو کې مونږ وچاته کړو ورناري
ساکنین نسته چې د خلګو ناره واوري

مونږ د خپلو پیشرفتو لاري څارلي
شاو خوا سوې راته بندي ټوله لاري

چې رشتیا سي اوس په هیڅ چا باور نسته
د باور د لاري ملګ سوله بې لاري

ګرم و سرد حالات پر مونږ باندي تیر یږي
سینې سرې سترګې چې وینم خونکاري

باوله مې را بلل د زړځ علاج نسته
اوس به خوږم پر ککری د ګوسو واري

خوراد یږي د امید و عدې یې را کړې
نن پر خپلو وعدو ګرځ سوله نا کاري

دریشا حیات ګړی په ګړی مرګ دی
چې د زړه ټخنه یې څې د وینو داري

# پرکمه رهي يو؟

ومنزله ته زه پرلوري د خطر ځم
پدې تګ کې په پښو نه ځمه په سر ځم
منزله وال په سينه ورځ له مانه تېر سوه
زما په مخ کې توره شپه ده مازيګر ځم
ناست چرتي يم د منزله لاره مې بنده
د مرګ لور ته زخمي زړه سوی ځګر ځم
د کاروان مهار په لاس کې د ساربان دی
اختيار نسته چې څټک په خپل نظر ځم
لاره ورکه د منزله ده شپه تاريکه
په بيابان کې د ورې، هيسته لروبر ځم
بې آبې ده احتمال د چولې شته دی
ترلمر څرکه ناخبره بې باور ځم
زما ريشاء څه د سفرلوري ورسوی
چې پرکمه خوا روان په کم سفر ځم

# پښتون پاته سو

تخت د سليمان گنج د قارون پاته سو
د هر پاچا جلا مضمون پاته سو

کرار، کرار پسي تو ليږي تولـــه
تن به روان سي که پرون پاته سو

چا زرغوني درختي د بيخه وکښـي
د بل آباد باغ شين، زرغون پاته سو

يو د بل مال ته پر ځلورو ورځي
د بل يو لاس او يو پښ وروڼ پاته سو

انسانيت د افغـانـانــو ولاړی
اوس يې خالي کوټ و پطلون پاته سو

انسانان ځي روان پر مخ دي رهي
تاجک، ازره، ازبک، پښتون پاته سو

د ريښا نوم او يا نښان به څه وي
که پر پره دي ځکه مسکون پاته سو

# لاس یوکئ

پښتانه، تاجک، شیعه، هزاره ګان     ترکمن، ازبک، بلوڅ، نورستانیان
هر تکم چې پدې خاوره کې هستیږي     بیل کیږي په یوه نوم د افغان
افغانان د دې هیواد میراث خواره دي     ځکه ټول د دې خاورې دي بچیان
اشغالګر غواړي چې دوی سره جلا کړي     چې بیا وروسته وي اشغال ورته آسان
لمړی غواړي چې پر قوم، مذهب یې بیل کړي     پدې توګه یې کمزوری کاندي توان
بیا جلا، جلا پر هر یوه حمله کړي     د بشر د غوښو وږي شرمښان
افغانان که ځان او اولاد ته امن غواړي     د دښمن په دسیسو دي پوه کړي ځان
د یووالي اسلحه خورا کاري ده     په نفاق کې د بل ګټه ده خپل زیان
که بقا غواړي ملي وحدت یې شرط دئ     بې یووالي تدریجي مرګ ته روان
یا به حتماً یو ځای کیږي یا به ورک وي     د نقشې د مخه ټول افغانستان

د رښتیا خبري هر شنوانزاوري
د کڼو د پاره ندئ دا بیان

# د غالیانو سوو

راته پیښې دئ هره ورځ نوئ سر درد | د تورمخو سکروګاز کړم ګرم، سرد
لګو نه سر دردي او سرچرخي ده | زېړه مي رېږ دي د نارنج په رنګ، رنګ زرد
هوائي سوم تکهارئ مي په سر کښې | ترغوږو مي تګان باسي مرد نامرد
د کوتې یاران مي واړه هوایان دي | وکومک ته پیدا نسو بل همدرد
آرام نلرم په سر کي مي برچې ځي | سرچرخیو کړم د ژوند تخته د لسرد
چي یې وینم تورمخي بد مي ایسي | زغالی کړم د تورمخو سکروګرد
زه د ژمي د ساړه جنګه دار یږم | چي اخیستي سره لوي وي فرد، فرد
د اسخت ژمئ به خاوند پخیر تیر کړي | د سکرو مخ به وي توره په عمل کرد

رنګ زردي به و ریشانئ سرخروئي وي
که یو ځل یې د سکرو موسم کئ طرد

# فراري عاشق

چي ځان نکړي د يار مخ ته سپيلني
هغه کله عاشقان دي رښتني

تر چولو چي د جانان ومخ ته ګوري
هغه خوشي ننداريان دي بهرني

که د مرګ سکلې د يار پر زنګانه وي
دا وصلت دئ مګر هو، زکندني

که وصلت د يار پر ښو فراري سو
په قانون د عشق يې خپل ځان کړئ خوني

چي کوڅه د يار په او ښکوا و پاشي کړي
لري هسي تروې اوښکي شيريني

مرام کاته او تبسم يې نوی ژوند دئ
سل کلن زاړه به کړي شل کلني

عاشقان د يار ودر ته ملنګان وي
چي پر د ښت ګزري هغه دي لېوني

زما د عشق صفحه د يار په توصيف ډکه
له ښايسته د رېښا اشناغني

# مردار خواره

ماليده خوري، هم ډېري، جواري خوري
کلنګي چرګه و چرګ واړه جاري خوري
چغالان بيا د چرګانو قاتلان دي
ترمنا يې ډېر چټک پرهواري خوري
دلاينو په ټلاينو کې بابند ښکار کړي
طبيعت يې دئ چې هره مرداري خوري
اِشتها چې يې د حرص په بنوړکې راغله
مرداري لا په خورا مزه داري خوري
د هرچا مطلب خوړک دئ په ژوندون کې
يو په زور بل يې په ډېره هوښياري خوري
څوک کړار، کرار خوړک په حوصله کړي
څوک غوټې وهي خوراې تلواري خوري
ريښا شکه د حرام خوړو ونکړي
حرام خور آخر پر سرواري کاري خوري

# ترکلکين راته ګوري

لا مړنه دئ چې پر سر يې کېږي واړي
لا يې نه ويني چې ويني وهي داري
نامردان وي چې پر مړو توري راکاږي
پر راکښلي يې وي سري سترګي خونکاري
څنګه زړه دئ چې د وړور په مرګ ښادي کا
او ړاباسي پسله له مرګه يې انداري
دا نن څه زلزله ګډه په نړۍ ده
چې يې ښځې، نر وهي د غم کوکاري
دا د کم چپاول ګرو چپاول دئ
چې په سينه وړخ نيولي يې دي لاړي
پر ميدان باندي يې مخ نه ليدل کيږي
تماشا کړي په کلکين کې ترهنداري
ريشاء داسي تمګاري په سترګو ويني
انسانان وژني لا ځان ګڼي خداى پاري

# ګلګل میري

تجارت نن ورځ اکثره سود خوړې سوه
عقیدوکي پینبه د اسي کمزوري سوه
که په هر قسم خوش مېري پیدا کیږي
د ده نکري تولېده یې رنځوري سوه
بې پیسو شه، بله مینه، الفت نسته
د روپو حب دی چي ورکه مو، وروړې سوه
کیسه برندي د بل د جیب یې کاږي
که څوک څیر سي د غه هم کیسه بړې سوه
د روپو ګوني په شاوړي و داوړي یې
حمالي ده چي یې نوم سوداګري سوه
سرمایې د چل هیواده ځځه باسي
واولس ته پاته خود دربدري سوه
حساب ورک دی محاسب دی ناخبره
ګډوډي، بې حسابي ګلګل میري سوه
ریشاء خیل خان دي په لږ سره قانع کړه
ډیرول یې وبل چاته مزدوري سوه

# توپک خپل وپردي نه پیژني

زړه چې د توپک وسوځي بل وژني
نه لري تمیز پره دي وخپل وژني
زړه کې چې یې بل داور لمبه سوله
څو چې زړه یخ نکي سل وشل وژني
کله سته تو پیر پرې د انسان حیوان
خره وژني، غوایي، انسانان سل وژني
دک توپک سنګدل انسان چې واخستی
خلګ پر کشمیر او پر کابل وژني
دوست ودښمن کله توپک پیژني
نه یې په پوښتنه ني توکل وژني
هر توپک ومرګ لره جوړ سوی دی
کله ډیر عاقل کله پاګل وژني
ورک دي وي توپک د کتاروسره
ځکه تش لیدل یې ریشائتل وژني

# بېوسه يو

زه بې وسه، ته بې وسه، دی بې وسه
موږ بې وسه سوو چې دوی سوه ګل هوسه

نو به خود دوس دارانو ناخيږه وي
پر موږ شپېرې دروني مال يو په لسه

مچمچې که څوک چیچې دا دې عسل دی
شات خوچانه دي اخستي له مګسه

چې بې وسه د خپل وس په جال کښې باسېي
خدايه وباسي کمې د دوی له نسه

په يوه آذان يوه مسجد کې لمونځ کړي
مګر بعضي يې ولاړ وي بې اود سه

يو خواخوږی زموږ د پاره پيدا نسو
په دې لويه کورنۍ کې يو بې کسه

ريشاء بند دی په قفس د بې وسۍ کې
فرياد ونه يې راوزي له قفسه

# پر صراف کلپي نه چلېږي

کوز بار کله تر منزله پورې رسېږي
تر هدفه پورې پرلارې چپه کېږي
که کوټه سکه دې ورکړه و صراف ته
کلپي کله پر صراف باندې چلېږي
د رښتیاد باغو درختې وي پربار
د دروغو درختې وچې سې رژېږي
که د بله يې الغيچ کړه ځان ته کوټه
چې مصرف يې نکړې بل لره پاتېږي
چې پرلوټو باندې پورته پوخ دېوال سي
د بقاء امید ترې مه کوه نړېږي
د خولې لار او د زړه لار چې يوه نه وي
اقرباء لا د هغو ځنې بېلېږي
ته ډېر ښه وایې رښتيا کوږ دې ودان سه
خو تر تا ستا مخاطب ښه په پوهېږي

# راغله، ولاړه

مړې کړۍ مورمړۍ بیابه یاد نسي
غرونړیدۍ بیابه ایستاد نسي
غم یې پرکورتوره لیکه وکښله
دومړي غم زده، سوچې به بنیاد نسي
ډیرو نامردانو ډیرنامراده کړل
دانا مراده زړونه به د مراد نسي
یو واړچي سقوط سوا اعتبار دچیا
بیابه دوهم ځل د اعتماد نسي
یو ځل چي په مرګ په لحد ننوزي
هغوته د ژوند دوا ایجاد نسي
اوس یې ساګرې دمرګي یاد لري
ژوندي بایدپس له دې پیاد نسي
سرپټ کړه ریشا، په رنګت وژاړه
ښو غمخور پیدا د دې هیواد نسي

# بدي خاطرې

راته پاته ډېرې بدې خاطرې دي
په غوږو کې د وحشي حیوان نارې دي
په لېدو سره آواز د خولې نه وزي
ګنګوسه یم چې داخنګه قوارې دي
د خبرو مجال نه دئ راته پاته
یا د لاس او یا د سترګو اشارې دي
د غمجنو اوښکو سیل پر مخ بهیږي
د زړګي د وینو پوره فوارې دي
د علاج دلرو بې ندئ پیدا سوئ
طبیبان نه علاج، نه د چارې دي
ستا په داد خدائ رسیږي ریشا خوره
نور دي ټوله کوښښونه بې وارې دي

# منافق

محامخ چي درته ناست وي، جان، قربان به درته وايي
که دي سترګي سوې نه وي، بدګويي يې پس شا وي
هسي خلک منافق وي، چې زړه، خوله يې يوه نه وه
ستا پر غم د ره سره ژاړي، پښلا کوي خنداوي
په دوستۍ يې باور نسته، وي دوستي يې په دروغو
ظاهر ځان بولي تېرونی، دښمني يې بيا په غلا وي
په ظاهر جار و قربان او په لباس يې خطا مسه
باطني خوی و خصلت يې، د انسان نه وي بلا وي
هوښ کوه! د هسي خلګو په ګفتار سره تېر نه وزې
چي وينا، عمل يې دوا ره، يو د بل سره جلا وي
همېشه د صاد قانو سره دوست و همنشين سه
د کاذب او دروغجن څخه د وري دي د ريښا[1] وي

# کوزلاس کوزمغزی

د همت ښښتنان طمع دچا نکړي
شهامت به په خشم وسودا نکړي
نه کوږ لاس ؤ کوږ مغزی نیسي وچاته
او په لاس کی به د فقر عصا نکړي
بې همت وي چې د بله منته غواړي
بې همته بیا هم وړکړه وړیا نکړي
خپله خوري خپله ګټي لږ وي که ډیره
د بل مال لره به اوږ د لاس دغلا نکړي
دا کس نه دئ چه غیرت کې تر پښو لاندي
او پر خپلو لاسو، پښو اتکا نکړي
هسي ډیر مفت خواره سته په جامعه کښې
په دړواغو داخبره ریښا نکړي

# برګ ګل

چي پر لاړ شي برګ ګل يې خوروي
په پړه دي اشاره خپل يې خوروي
برګ ګلو يې پر سراوړونه بل کړه
مغز جوش وخوړ کوګل يې خوروي
برګ ګل که وي څو ورځي نه عمل کيږي
په کلو کنداغ وهل يې خوروي
بېګانه وويې خپلوان دي بد راه کړي
چي رشتيا سي ګواکي بل يې خوروي
حق دئ چيري چي خپل ځان ورته تسليم کړي
د سوتي په زور مثل يې خوروي
ولي برګ برګ ورته ګوري څو انسان دئ
له دي لاري څه وتل يې خوروي
د وجدان دادګاه که هر چيري پيدا سوه
ريښا هم ورځي چي تل يې خوروي

# بنه انګور چغال وهي

څوک چي يې پر مخ همي پر نال وهي
خر د دوی د آس سره چهار نال وهي
وي به، چي د باغ قوالـه ستا شه وي
امّا، هغه بنـه انګور چغــــال وهي
څوک وای چي حق دي مه وي غواړه
څوک بيا مخامخ دي ســـرمال وهي
چا دامبري لاړ په ځينو ورانه کـــړه
بل بيا کښت ته مځکه په دوپال وهي
ماغوبنته تعمير دو منزله کـړمـه
سړای مياڼځ کي جاهل بنا ديوال وهي
شه سو محتسب او شرعي دُری
ولي په شلاخوي کوتوال وهي
غلیٔ سه ريشا' فرياد و چاته کړې
تا خوهم پره دی هم انديوال وهي

# پښې نه پړ ورځې

پښې هغه کږدیوته بیانه ورځې
زړه چې یې هابرګ کوته کوتلۍ دۍ

لیرې په دوربین کې وړمعلومه سوه
تورې دې کږدۍ کلی وتلۍ دۍ

نه بلیږي اور په دې نغریوکې
دلته دوږخې اورلګېدلۍ دۍ

پاته، تښه، توره سوله دامینه
میږي، او ښان نسته تللۍ کلی دۍ

دلته پړلا ښو باندې کارګان ګرزي
شاو خوا اتڼ یې اچولۍ دۍ

بیا به هغه دې مینې ته راسي
یو ځل چې کوته وړغورځېدلۍ دۍ

ځې د ښامار اړخ ته اتراغ کوي
پلار د دې ښامار ریشا چیچلی دۍ

# اینده نتیجه

هر ډول مستي نن وړخ کولای سې
هر قسم ډرې په چا وهلای سې
تا نن ډېږ وسو واک اخیستئ دئ
ټوله په یوه وندړ تړلای سې
تا د صیاد دي لوی تور اودلئ دئ
ته لا هوائي مرغان نیولای سې
داسي اسلحې دي سازي کړي دي
لیري و نژدې هدف ویشتلای سې
لوی کراته بازي چالاکي لري
هر ځای خپل حریف راځملولای سې
حرص دي نه مړیږي چې هر څونه خوړې
هر څه په سرابنتوب سره خوړلای سې
ته که آینده ته نظر واچوې
څنګه نتیجه ځني ایستلای سې
وبنیه ریښا چي دا ته څوک بنیې؟
ما ته دا بنیلي رابنوولای سې؟

# دبیت المال موزکان

کښېږدی ژر تلکي موزکانـــو تـــه
دا دبیت المال رشوت خورانـــو تـــه
وې نیسئ ترڅټ عدل تې وسپارئ
ورکړئ سزاګاني خـــائینانو ته
ونغاړئ کمبله دفساد، رشوت
وغورځوئ فـرش وصادقانـو تـــه
چاکه د ملت په سرسودا کول
مه ورکوئ ســـر دې تاجرانو ته
چاکه حقیقت په توپک وویشتي
تینګه چکه ورکړئ جا هـــلانو ته
هرڅوک چي خدمت په صداقت کوي
وسپارئ اختیار وخـادمانـو ته
نن ورځ ریښا هرملت پوه سوئ دئ
ځان به خوشي نـکړی ناپوهانو ته

# نه شرم نه حیا

مخ دي پرته کړه د هرچا میراث خوره
حرام خوره تاته وایمه مخ توره
د عالمه دي نه شرم، نه وا یه سته
چې د بل یتی دي لاندې کړ په زوره
جنتونه جوړوې د ځان د پاره
نه بېرېږې د دوزخ له سخته اوره؟
په ژوندني که دي غاړې خلاصې نکړې
نه خلاصېږې پسله مرګه زموږ د پوره
د سیسې دي زما د ګلې باغ کړې جوړې
تاکړه لاندې زره دي وایستم ذکوره
ولې دومرې بې غورې سوه په جهان کې؟
ولې نسوه د ظالم کاسه نسکوره؟
درېشا ذره دخروښه غلبلې دې
د فشار حمله بې واستوې ترګوره

# ترکه‌وارزانه

د پیسو په مقابل کې هر قوت ولاړ
د پیسو څخه بیا خیر و برکت ولاړ
نن سړي رانیول کیږي و خرڅیږي
که داگنه وه نور هو له تجارت ولاړ
ترکه و دئ د همنوع سرا رزانه
چې د چا څخه اصلي انسانیت ولاړ
پر نړۍ د سرو مردکو باران اوري
رحم نسته شفقت ولاړ محبت ولاړ
انسانان چې د یروندر کړي مرد هغه دئ
خپلواکي و آزادي و حریت ولاړ
عاجزان د جهان واړه د زړه سوي دي
په شومتیا یې د وجو څخه طاقت ولاړ
پر مغزي به لاړ یشانو رسوي وخوري
د سرو څه که د عقل سلطنت ولاړ

# سوک زړه

چاته تش کړمه د ګروهڅه یوک زړه
د تیروني دوست د کاني پشان کلک زړه

زړونه واړه ګوښي، ګوښي حرکت کړي
پیدا نسو د دوه کسو مشترک زړه

هسې خلګ په ژوندون کې وي ناکامه
که لاره یې په تصمیم کې دل د لک زړه

که ضرر یې رسیږي بل مسلمان ته
د سړي نه دی، هغه دی د موږک زړه

که غماز زما د جانان ترڅنګ رهي وو
د کوګله هغه د مسي لا درک زړه

چې لیدلی مې نجس مخ د رقیب دی
د هغې ورځې اخستی مې دی دک زړه

دل سوخته ریشا د شمع پشان سوځي
را ایستلی یې محفل ته دی سوک زړه

# اوږد زکندن

که مطلب وي ومقصد ته رسیدن
دې وزلو سره تل کړه د ویـدن
د ړمې ترمخ که هرڅو ځي مغـروره
د قصاب چاړه بې قطع کړي ګردن
په یوه ډبره ټوله کارګان غـورځي
چې پرلاش باندې راټول وي په خوړن
د لیوه ترځنګ که وَدَرېدې ولاړې
د لیوه لمړۍ حمله به یا دړیـدن
همیشه پر یوه حال څوک نه پاتېږي
هر ژوندي ته په آخرکې سته مردن
ت
مرد هغه دی چې ښه نوم یې ځان تهوګو
نه پرمخ د خلګو ناړې توئیدن

ست
که په طمع د جانان د وصل نا وي
دې
پریشا باندې به اوږ ې زکندن

# پسرلیوه زخم بل زخم

ستا د ګرومه څخه وینې د ځګر خوړم
بر ناحقه زه دواوې د ډاکټر خوړم
نه ژړی یم، نه مې تبه، نه سر دړد یم
د ناکسو چیلاخې سرپرسر خوړم
ځوانی پرهار لا نه وی پیوند سوئ
پر هغه زخم وارونه مکرر خوړم
یم دوینو په تالاب کې غوټه سوئ
نو به چیری پر دې حال شیروشکر خوړم
داغزیو په تونل کې مې سفر سو
پر وجود باندې د هرې خوانشتر خوړم
زما ریشا آرامې ولاړه دیدنی دی
شپه او ورځ لغښته د ژړګوږ بستر خوړم

# ښه کوئ بد مه کوئ

د همنوع سره ښه کړه څوديوس وي
د يوې نېکۍ عوض به دي په لس وي
که بدي کوې د هرچا به منفوربې
حيثيت به دي وهرچا ته دخس وي
د نيکيو پر دنيا ،عقبیٰ عـوض سته
د بديو توبه ګار سـه څو نفس وي
که څوک غواړي په اولس کي وي نېکنامه
يا يې تل چوخه اغوستې داطلس وي
نو پر لوی او پر کوچني دي مهربان سي
چي د هرچا يې خبرو ته هوس وي
رېشا، ليري ګوښه ګرزه د بدکاره
او که نه نږی به تالره قفس وي

# سگریت کښانو!

مه شکوه سگریټ چي ډېر ضرر لري — سزي ورانوي د مرگ خطر لري
نه سوځي لوږتونه څوک په اور سره — هر دانا که گټي ته نظر لري
پوهېږم چي اضرار یي دي معلوم تا ته — ټول سگریټ کښان په دي خبر لري
تېښکي وچ وي خلق لکه تغر دچا — هر څوک یي پدي علت باور لري
وړ غوره خپل ځان له دي خطر څخه — ستا ژغوره زښته خوږ ثمر لري
عقل دی چي ځان ورځني خلاص کاندي — هلته سگریټ کښي ژوندون بهتر لري

هوده غواړي، عظم، تعقل غواړي
بیانو د ریشا وینا اثر لري

# نصوار یانوته

ژر غابښونه خوله ترخه د نصواري — په وراني بدلوي سپین غابښ مرواري
چي یي خوړ سکي بوي د خولي څخه ولاړېږي — د هغو سره چي و نکړي یاري
دا عمل زما د دوست په نصیب مکړي — چي د خولي څخه یي شني ناړي جاري
چي په خوله کي یي نصوار وي کمي خبري — بدمي ایسي، خو یې ځني ده ناچاري
تف دانۍ یي وي د شنو موادو ډکه — په پریولو کي تیر وي پر بل خواري
په مجلس کي چي تفدان نه وي ترشا سي — تر کمبله لاندي تف کړي تلواري

په دي بد عمل ریشا خوار اخته مکړه
چي دوستان یي ځني نسي فراري

# خپلي ښکلي ته خم

تـه که ګلدستې وچمن نګار ته وړې | هغه ګلان کله غوړېدلي دي
تاکه ښځواني ګلان سائلي وي | دا غوټۍ ښوا لا رژېدلي دي
ته که دیار دړ ته سلامي ته ځې | هغه دروازې لا سوځېدلي دي
هرڅوک چه په دید پسي کوڅې ته کړي | تول دیوالونه را لوېدلي دي
هو، محبوب خو ستا ډېر وفادار دی | ستا رانګ تې دوې سترګې پوښلي دي
وصل که د یار غواړې احتیاط کوه | دې لاړکي ښېلي ښوېدلي دي

پوه یم، یار ریشا ته انتظار باسي
ژړ ورځم د یار سترګې مې ښکلي دي

# خبره خلاصه ده

نه منه بیا دي خبر نه منم | ما له تا دروغ ډېر اورېدلي دي
نه لري وعدې دي وفا نـلري | څوځلي وعدې دي ماتې کړې دي
بیا به په غلطو وعدو تېر نـه وزم | تېر ویل دي ټول دروغ ویلي دي
ما ته دي اصلي چهره معلومه سوه | ستا د مخ ماسکونه مې شمېرلي دي
مکوه د خدای د روی ته وګوره | زما تر زړه د عشق غشي ختلي دي
پرېږې مې زده چې زه و یار خواله وکو | ډېري د فراق شپې مې ګاللي دي

نور ریشاء د وصل هوس مه کوه
ستا د یار کوڅې لا نږېدلي دي

# خوندې نشته

زندۍ سوی یم د غاړې خلاصیت نشته
په دې وخت کې هیڅ فرصت د وصیت نشته
د سرکښ ظالم په لاس کې مې بنارګ دی
مرګ مباح ګڼي پر قتل دیت نشته
څوک په دین کې جوړ وي هره خوا لاړې
د الله پر خوا تګ ته یې نیت نشته
عبرت نشته غیرت نشته، حیا نشته
انصاف کوچ سو عدالت، خیریت نشته
مزه ولاړه څه بې خونده زندګي ده
په احبابو کې لا هیڅ مزیت نشته
څکه خلګ تلخګیو دې ګیر کړي
چې نن ژوند کې هیڅ مزه کیفیت نشته
ریشا خوار د بدامنۍ منګولو کښې ګېر
خود به وايي چې د سر امنیت نشته

# په توک یا ځیره گزاره

آینده کي د گلزاره امید پري ســـو
غوړېدلی باغ مو وسوځېدلي پري سـو
هغه زړه چي له بنا دی به غوړېدلی
نن د غم په چاړه پرې کتري، کتري سو
پر نړۍ مي د خپل سر، سرلوړي غوښته
د دښمن په کندا غو زړې، زړي ســـو
چي جوغه يې تر آسمانه رسېد لـــه
ولي هغه ځوان پيچلــی د بغري ســو؟
دلمانځه په صف کي زما ترخنگ ولاړ وو
نن هغه را ځځه وغورځېد دوړې سو
د غمو پر را شه باندي به ناست وو
خپل نصيب يې يا د توک يا د ځيري سو
رېښتیا غوښته پر د دښمن چي بری من سي
سو بمن نسوی په میدان کي خړې په خړې سو

# د ډالرو مریدان

د عزت د باغ گلونه مې خزان سوه
له تنې څخه زخمي نو نهالان سوه
د غیرت شمله دارانو پیناه وړه
چې په پېڅه یې شین سترگي د ښمنان سوه
د غیرت نوم یې گڼلئ په کلو وو
بې ننگي له ور روان په یوه آن سوه
په قرآن او احادیثو یې عمل وو
نن یوائځ د ډالرو مریدان سوه
سمه لار د خدای یې پرېښوه کاږه سوه
گنده خوړ غوندي کاږه سوه یا کاړگان سوه
ننته یې د اولاد د چوړ د ماله
د سیاه سرو د یتیم مال ته د ږدان سوه
نعاړې چې د غیرت یې د ننگولې
نن هغه ولي د بل د کوړ مریان سوه
د افغان په تېرواته چې ریشاء پوه سو
تیر یې ولگېد پر زړه وینه فوران سوه

# بې سوره سازته اتڼ

د بقا د پاره څه امید واړي سته؟
چې په سرکي دې خیالونه سرداري سته
ډېر دلیري د ډاله آوازته غوږ نه‌ږدي؟
کړ ستر ګو دي د ښوخارګیرۍ سند؟
د اتڼ سره که پښه سمه وانه‌خلي
سراسر پدې اتڼ کي بې سوري سته
که غربي لاره د ډول سره زغیږي
هنرمند ته یې لږ چانس د بري سته
و بې سوره ساز و ډول ته‌چې اتڼ وي
خوند یې نه وي صرف روپوته‌خاکښوري سته
پر وطن چې د بل ساز ته په نڅا وي
ډېره دو د هیواد والو بېزاري سته
د پرون خبري نن ځکه دروغ دي
چې د سره یې په سرکي مرداري سته
سترګي پوټي که په‌غوږکي پښه کښېږده
بله چاره ریښاء نسته ناچاري سته



# د غوښو اکسیر

خپل ښارونه ئې بل ته تعمیر جوړ کړي — بل خوشحال دو ئې خپل خان ته وير جوړ کړي
داسي يو ملت ما ته را وښيا ست — دوی چي د سوتې ځنه وزیر جوړ کړي
ولی ورور د ورور د وینو تږی سي؟ — ولی د آزاد انسان اسیر جوړ کړي
د غه لنگه غوا چا رانیولې ده؟ — سړو کال چي کوچ جوړ کړي پنیر جوړ کړي
عقل يي د سره اول وباسي — بیا له دې انسان ځنه اجیر جوړ کړي
داسي مداریان نن په نړۍ کي سته — گوته باندي خلگو ته کشمیر جوړ کړي
دا رنگ تأثیري نسخې پیدا سولې — غوښو د انسان ځنه اکسیر جوړ کړي
نسته د ریشا امید وبل چا ته — بیله چي کارونه يي تقدیر جوړ کړي

# جوال شکاف

په هر کار کي چي چا ودرلود انصاف — هغه خلگ وي په خپلو زړو کي صاف
انصاف دار سړی عادل وي هم صادق وي — بې انصاف لکه موږک جوال شکاف
تېر ایستل د ده د گټي وسیله ده — اوبزد کمیس يي د دروا غو وي غلاف
صداقت يي تر موزو وي لاندي کړی — خیانت د ده په ذهن وي معاف
د یتیم سو روپیو مال په سوو خرڅ کړي — بیا نو هر کال ځي مکي ته کړي طواف
احتکار ته يي ساتلي وي مالونه — خود جگیږي کال په کال د گټي گراف

چي تر څو بې انصافان وي په جهان کي
د ریشا به ورسره وي اختلاف




## خرامبو

په خوړک کي کړه احتیاط که صحت غواړې
کار کوه که دي د ژونده لذت غواړي
د هر چا سره اخلاص او صداقت کړه
که په واړه جامعه کي عزت غواړي
د خالق د مخلوقاتو سره ښه کړه
په رشتیا سره که ځان ته جنت غواړي
بې وسان او عاجزان تر لاسو نیسه
که په تش لاس کي دي زور قوت غواړي
خوشي مه سه خرامبو چي تل خوړک کړي
چي وځان لره هم ناز هم نعمت غواړي
بې له ځانه څه د نورو غم هم وخوره
که دبل په غمخوري کي شرکت غواړي
ریشا ستا نصیحتونه ډیر سودمند دي
ځکه خلګو لره خیر برکت غواړي

## ترنس کښته مزدوري

خپل ښار و نه یې وبل ته کړه ایله
ځني پاته سول خپل کښت و کروندة
دوی دبل پر محکه یوې ده ترلې
ځان یې خرڅ کړئ په نیم نس یوه ګوله
پره دې مځکي دوی وبل ته کړي آبادي
په اهار او دیخنیو په څله
اولادونه یې د لوږې اسکلیټ سوه
د بادار اولاد یې سولکه بره
دغه بده ورځ تنها د دهقان نده
هغه هم دي چي په یوه وي آراسته
دا د جهل نتیجه را غله افغان ته
لاتر کله به وي دې کار ته شله
د دې ټولو بد بختیو علت یو دئ
اجنبي لاس دئ ریشا پس پرده

# کږې لارې

د غمجنه حاله تلـرمـه د مـه
یو ساعت یو ګړی نه یمه بېغمه
د بنا دیو مجمې زما له کوره وزې
بې نصیبه سوم د هر قسم نعمه
په تیاروکې مې سفر د سیاه بختۍ سو
ورناته وتل ګران سوه د تور تمه
د بنا دیو په کاروان پسې روان یم
مجبورې ده پسې خم تر مسجده مه
د سیالانو په دفتر کې یم نوم ورکړ
کم کاتب یم اچولي لـه قلمـه
نا امېده بې توبنې تورو دروکې
قریب نسته شیطانان مې دي همدمه
د غم شپه ده تاریکه ده کږې لارې
ریښاء غواړې چې پیدا کړې لاره سمه